تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة

# في

# حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابو العزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ رحمہ اللہ

محرر و مرتب

سید محمد ثواب

ابن سید اسمٰعیل بابا صاحب

اولہ حصہ

ناشر

مدرسہ حدیقۃ الاحناف






# از تشریحات النابغه

# مسئله

# تبرک

# بأثار الصالحین

# مسئلة التبرك بآثار الصالحين :

الحمد لله وحده والصلاة والسلام على من لا نبي بعده ولا رسول بعده وهو خاتم النبيين أما بعد ! فأعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم : ﴿إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبَارَكًا وَهُدًى لِلْعَالَمِينَ﴾ سورة آل عمران آيت : .

نن عظيمه مسئله مختلف ومتنازعه بيننا و بين الخصم هغه مسئله د تبرک ده بآثار الصالحين که انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَام دي او که اولياء کرام دي هر هغه شي چې د هغوي سره وابستګي او تعلق لري که هغه ما بقي د ذات د هغه نه وي ، ويښتان زلفې د هغوي يا ريږ او لاړې د هغوي او که هغه يو شي زائد چې څه نا څه تعلق يې تر د غه ذاته وي. لکه لباس ، عمامه او نعلين .

يا هر هغه موضع چې کوم موضع کې د هغوي جلوس شوې وي دا ټول د برکاتو نه ډک وي ، دا هغه عظيمه مسئله ده چې خصم ټول په کې متفق دي که اشاعتيان دي که جماعة المسلمين دي که اهل حديث دي غير مقلدين حتی چې تبليغي جماعت والا امراء ددوي هم تبرک بآثار الصالحين ته د شرک عقيده ساتي نو دا بنيادي مسئله ده بيننا و بين الخصم .

دې ته نسبت د شرک کول عظيم جرم ځکه دي چې انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَام صحابه کرام اسلاف د امت هغوي ټولو تبرک بآثار الصالحين نيولي او ټول په دې عقيده تير شوې .

من لدن الصحابة إلى اليوم ټول سنيان تبرک بآثار صالحين نيسي که دا عقيده د مشرکينو شي نو په اسلافو د امت کې به يو محدث او فقيه داسې پاتې نه شي چې هغه تبرک نيولې نه وي ددوي تبرک ته شرک وايي لهذا ددوي فتوی ده ددوي په فتوی نسبت د شرک به ټول امت ته راشي .

دغه عظيمه مسئله مونږ مشتمله کړځوو په چند مباحثو باندې :

هرچې مبحث اول دی هغه په معنی لغوي د برکت کې او تحقيق لغوي او دا چې د برکت ماده په کومو مادو کې راځي ، په کومو ابوابو کې راځي او هر باب کې ددې يوه خپله معنی وي او هغه څه ده .

دوهم باب يا مبحث مشتمل دي په دې باندې چې نسبت د مبارک غير الله ته دا جائز ده

سرې مخلوق تـه مبارک وویلې شي استدلال ددي د کتاب الله نـه سره د ذکـر د اقوالـو د مفسرینو نه تائیداً .

دریم ثبوت د تبرک بآثار الصالحین په آحادیثو مبارکو باندې ، ګڼ تعداد روایات د بخاري شریف او د مسلم شریف بـه راشي چې صحابه کرامو د رحمة للعالمین پـه آثارو تبرکات نیولي دي .

او څلورم ثبوت د تبرک د عامة الفقهاء والمحدثین او عامو مصنفینو نه د هغوي اقوال به ددې متعلق ذکر شي .

## المبحث الأول : تحقيق البركة :

اصل کې برکت لغتاً دوه معانیو کې مستعمل ده یو راځي په معنی د دوام او ثبات باندې ماخوذ ددې قول د عربانو نه چې :

برك البعير و برك الماء اى داوم و ثبت .

معنی باندې دغه معنی تفسیر فتح القدیر جلد ۵ صفحه ۱۴۳ ذکر کړي .

دوهمه لغوي معنی ددغه مادې د برکت په معنی د نماء او زیادت مونږ چې دلته مسئله د برکت زیر بحث ګرځولې هغه برکت په معنی د دوام او ثبات سره نه دي هغه برکت پـه معنی ثاني نماء او زیادت سره دي دغه د برکت ماده په معنی د نماء او زیادت سره .

په څو بابونو کې مستعملیږي : کله دا راځي په باب د تفعیل کې مراد د هغې نه دعا بالبرکة وي تبریک معنی څه : اى دعا له بالبركة .

او کله دا په باب د مفاعلې کې راځي بیا یې تعدیت دریوو حروفو جارو سره کیدې شي په لام سره په فاء سره په علیٰ سره : بارك الله لك ، بارك الله عليك ، بارك الله فيك .

او که دغه ماده مستعمله شي په باب د تفاعل کې تبارک کله چې دا په باب د تفاعل کې مستعمله شي او نسبت یې شوې وي باري تعالی ته په معنی د تقدس وتطهر وتنزه سره :

تبارك الله ، تبارك الذي بيده الملك ، په معنی د تقدس وتنزه و تعاظم وتعالی سره .

او ځلورم دغه ماده د برکت مستعمليږي په باب د تفعل کې په معنی د تبرک سره د برکت ماده په باب د تفعل کې په معنی د تیمن سره : تبرك به ای تیمن به ، برکت يې پرې حاصل کړ.

دغه ګل معاني ذکر کړي صحاح د لغتو کتاب جلد ۱ صفحه ۲۰ او لسان العرب جلد ۶ صفحه ۱۶۸.

د قاموس جلد اول صفحه ۱۲۰۴ صفحه په ورقاتو ستاسو کې د برکت دغې معانيو ته اشاره شوې :

البركة ، محركة النماء و الزيادة و السعادة و التبريك الدعاء بها بالبركة .

تبریک مبارک شو تبارك الله باب تفعل ته چې لاړې .

وتبارك تقدس و تنزه صفة خاصة بالله تعالى.

د معجم الوسيط جلد ۱ صفحه ۵۱ :

تبارك تقدس وتطهر ورتفع تبارك الذي بيده الملك .

دغه معنی مراد ده .

د معنی لغوي د برکت او استعمال د دغه برکت په مختلفو بابونو کې په خپلو معانيو سره مونږ او تاسو ته د مخالفينو د خصم کل استدلالات را باطلوي هغوي برکت او تبرک بآثار الصالحين ته چې شرک وايي نو هغوي د پاره معظم په دلائلو د قرآن عظيم الشان نصوصو کې :

تبارك الذي بيده الملك ، يا تبارك الله احسن الخالقين ، يا تَبَارَكَ الَّذِي جَعَلَ فِي السَّمَاءِ بُرُوجًا.

يا په نص د حديث د امام مسلم کې : تبارك اسمك وتعالى جدك .

نو دغه دري آيتونه دغه دري نصوص قرآني او دا يو نص د حديث چې روايت د امام مسلم ده نو دغه د استدلالاتو قويو د خصم چونکې هغوي د علم نحو صرف او علم معاني بديع بيان نه ډير بعيد پاتې دي .

علماء د مخالفینو څه علماء دي یا قراء محض دي یا یې دري میاشتني کورسونه د ترجمې کړي دي او مسمی په شیخ القرآن دي دوي په فنونو مدونوو کې هیڅ مهارت نه لري علم چې څه شي ته وایي هغه دوي نه لري خاصتاً علم فقهي نه بالکل محروم دي .

نو چې هر کله د صحاح لسان العرب معجم الوسیط د لغتو د کتب نه د برکت دا ماده په باب د تفاعل کې منسوبه وه الی الله تعالی ته وه وه په معنی د تقدس تطهره تنزه سره نو بعیده شوه د هغې معنی متنازع فیه نه چې کوم کې مونږ سره جګړه جوړوي .

﴿تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ﴾. ﴿فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ﴾ ﴿تَبَارَكَ الَّذِي جَعَلَ فِي السَّمَاءِ بُرُوجًا﴾. وتبارك اسمك وتعالى جدك .

دا ددوي استدلالات دي دا ټولو کې آله العالمین ته نسبت د مبارک نه دي بلکې نسبت د متبارک ده .

تبارك يتبارك تباركاً اسم فاعل یې متبارِک جوړیږي نسبت خالق ته د باب مفاعلې نه کیږي د باب تفاعل کیږي او د باب تفاعل نه صیغه د اسم فاعل متفاعل جوړیږي مفاعل نه جوړیږي مخلوق ته نسبت چې شوې دي هغه په باب د مفاعله کې شوي.

فلان مبارك . فلانی شخص مبارک دي فلانی څیز مبارک دي .

د غلته دا مبارک په صیغې د اسم مفعول سره اخستلې کیږي له باب مفاعلې نه او د برکت نفس ماده دلته په معنی د زیادت او نماء سره ده .

دغه فلاني مبارک دي په معنی د برکت داد شده سره ده ته اله العالمین برکت ورکړې ده دده په لاس کې دده په دعا کې الله برکت اچولې دي دغه معنی شوه .

که څوک اعتراض وکړي چې اله ده ته ورکړې نو بیا دده څه صفت شو نو هر څه الله مونږ ته راکړي زمونږ د صفاتو نه دي علم مونږ ته خالق راکړي زمونږ صفت دي .

نو ترجمه دوي د تبارك الذي بيده الملك داسې کوي چې : مبارک ده هغه ذات چې په لاس دده کې بادشاهي ده دا څومره غلطه ترجمه ده په څو لحاظو سره هم لغوي هم صرفي هم نحوي لحاظ سره .

لغوي غلطي یې دا وکړه د تبارک الذي معنی یې په مبارک وکړه باب د تفاعل دي .

الذي بيده الملك موصول مع صله يې فاعل ده له دغه موصول مع صله چې فاعل د تبارك لئذ تعبير په صيغې د اسم فاعل وكه الضارب په معنى د الذي ضرب سره وي نو د تبارك الذي بيده الملك له ده نه تعبير يې مختصر په متبارك سره كيږي .

صرفي معنى لغوي ددې دا شوه چې الله متبارك دي دوي ترجمه د تبارك كوي په مبارك سره نو دا ترجمه د باب تفاعل نه ده په مفاعلې سره .

دوهمه عظيمه غلطي نحوي يې وكړه هغه دا چې الذي بيده الملك دا فاعل د تبارك ده دوي ترې نه تعبير وكړ په مبارك باندې او مبارك صيغه د اسم مفعول ده نو فاعل نه يې مفعول جوړ كړ .

كه بيا ته خامخا باب تفاعل مفاعل ته اړوې او داسې كوي بيا ورته مبارك مه وايه مبارِك په كسرې د راء سره ورته وايه .

تبارك الذي بيده الملك مبارِك هغه ذات دي او د مبارِك نسبت په صيغې د اسم فاعل مخلوق ته نه شي كولې مخلوق ته په صيغې د اسم معفول سره كيږي خالق ته نسبت په صيغې د اسم فاعل سره كيږي مبارك او يا يې خالق ته نسبت كيږي په مصدر ميمي سره مبارك مصدر ميمي هم راځي كه مبارك مصدري ميمي شي بيا يې اطلاق په خالق كيدې شي.

خو دومره خبره ده چې الله ذات دي او مبارك مصدر صرف وصف نو حمل د صرف وصف په ذات مطلق باندې اتحاد مصداقي نه لري نو صحيح نه شو .

نو ددغې حمل د صحت لپاره به بيا تاويل كوي هغه تاويل دا چې دا مبارك مصدر ميمي په معنى د ذوبركة سره واخلي يا به يې په معنى د موجد البركة سره واخلي اله موجِد د بركت دي اله ذو بركت دي دا الله چې موجد د بركت دي نو بركات چا كې اچوي دا اچوي په لاړو لاسونو لباسونو د انبياء كرامو او لياء كرامو كې د صلحاء كې چا واچول الله واچول .

الله يې مبارِك شو نو مباركان څوك شول انبياء اولياء شول دوي د تبارك الذي بيده الملك ترجمه كوي :

مبارك هغه ذات دي چې په لاس كې يې بادشاهي ده .

نو دا څو مره غلطه ترجمه ده په لغوي، صرفي او نحوي لحاظ سره باب تفاعل مفاعلې ته واړوه الذي فاعل وه دوي مفعول ته واړوله.

له دې تحقيق سره ددوي استدلالات ختم شول كوم ځای كې چې خالق ته نسبت دي نصوص وګورئ په باب د تفاعل كې نسبت شوې او باب د تفاعل كې اهل لغت وايي چې داد بركت معنى په تقدس تنزه سره ده هغه بيله معنى ده.

نو د تبارک خپله معنى دا شوه:

تقدس و تطهر و تنزه الذي بيده الملك.

د تبارك اسمك به معنى به دا وي:

تقدس اسمك و تطهر و تنزه اسمك.

## المبحث الثاني: استدلالات التبرک بآثار الصالحين من النصوص القرآنية:

څه نصوص زمونږ ددوي دعوه باطلوي دوي وايي نسبت د مبارک غير الله ته شرک ده د قرآن عظيم الشان نصوص ګورو چې مخلوق ته د مبارک نسبت كوي او كه نه:

سورة آل عمران آيت: ۹٦:

﴿إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبَارَكًا وَهُدًى لِلْعَالَمِينَ﴾

اوس دلته نسبت د مبارک شوې مكې معظمې ته او زمين د مكې خالق نه دي مخلوق دي نو دليل په دې شو چې مخلوق ته مبارک ويل شرک نه دي جائز دي نو چې ځمكې ته مبارک ويل جائز شول انبياء اولياء ته به ولې جائز نه وي.

آيا د مكې ځمكه د ذات مصطفى نه غوره كيدې شي نه شي كيدې اتفاق د علماو سره دا خپله كعبه مباركه دې كې علماء اختلاف كوي چې د مكې معظمې ځمكه بهتره ده كه د مدينې منورې ځمكه ثلاثه آئمه په دې متفق دي چې ځمكه د مكې معظمې بهتره ده.

امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ وايي نه ځمكه د مدينې منورې بهتره ده له ځمكې د مكې معظمې نه دې مدني وه نو مينه يې مدينې سره زياته وه دده دا مذهب ده او د جمهورو هغه بيرته

جمهور علماء استثناء کوي مګر بقعه هغه چې تلي ده جسد محمد مصطفی ﷺ سره د روضې مبارکې ځمکه چې د نبي علیه السلام وجود مبارک سره تړوته لږېدلي دا ځمکه په کعبه حتی چې په عرش هم بهتره ده.

دا فتوی ابن تیمیه هم په خپله فتاوی کې ورکړي چا ترې تپوس کړې ده چې مدینه منوره بهتره ده که مکه معظمه. سائل بیا سوال کړې چې نه کوم ځای کې نبي علیه السلام ناسته کړې وې هغه ځای بهتره ده که مکه.

هغه جواب ورکوي چې ستا سوال څه تفصیل غواړي یو هغه دا چې ناسته یې کړې وي بیا ترې تلې وي یو هغه ټوټه چې د نبي علیه السلام وجود مبارک ورسره لږېدلې وي کوم ځای کې یې چې ناسته کړې وي بیا ترې تللې وي هغې نه کعبه بهتره ده او هغه ټوټه چې د ده وجود مبارک ورسره لږېدلي تصریح کوي. ابن تیمیه وایي کعبه څه کوي چې هغه ټوټه په عرش هم بهتره ده.

نو زه وایم چې د مکې معظمې ځمکې ته قرآن کریم مبارکه ویلې نو ذات د وجود مصطفی ﷺ چې د هغه د وجود سره کومه ټوټه ځمکه په لحد کې لږېدلې وي هغه د عرش نه بهتره شوه د کعبې نه بهتره شوه نو خپله ذات المصطفی ﷺ به څومره بهتر وي.

نو چې مکه مبارکه ده نو ذات مصطفی څنګ مبارک نه شو اطلاق د مبارک څنګه شرک شو هغه ته.

دویم دلیل سورة الانعام:

﴿ وَهَٰذَا كِتَابٌ أَنزَلْنَاهُ مُبَارَكٌ مُّصَدِّقُ الَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ وَلِتُنذِرَ أُمَّ الْقُرَىٰ وَمَنْ حَوْلَهَا وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ يُؤْمِنُونَ بِهِ وَهُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ ﴾.

ګورئ دلته الله پاک قرآن عظیم الشان ته مبارک ویلي.

دریم دلیل سورة الانبیاء آیت: ۵۰:

﴿ وَهَٰذَا ذِكْرٌ مُّبَارَكٌ أَنزَلْنَاهُ أَفَأَنتُمْ لَهُ مُنكِرُونَ ﴾.

دارنګې سورة الانعام آیت: ۱۵۵:

﴿وَهَـٰذَا كِتَابٌ أَنزَلْنَاهُ مُبَارَكٌ فَاتَّبِعُوهُ وَاتَّقُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾.
دا ټول نسبتونه قرآن عظيم الشان ته دي.
دارنګې سورة مريم آيت: ۳۱ عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ قوم کې ماشوم توب کې اعلان کوي زانګو کې پروت ده:
﴿وَجَعَلَنِي مُبَارَكًا أَيْنَ مَا كُنتُ وَأَوْصَانِي بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ مَا دُمْتُ حَيًّا﴾.
چيرته چې زه يم رب کريم مبارک ګرځولې يم عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ ځان ته د مبارک نسبت کوي چيرته چې زه يم رب کريم مبارک ګرځولې يم.
دارنګې سورة المؤمنون آيت: ۲۹:
﴿وَقُل رَّبِّ أَنزِلْنِي مُنزَلًا مُّبَارَكًا وَأَنتَ خَيْرُ الْمُنزِلِينَ﴾.

بعضې مفسرين وايي چې دا قول ده ته چې قل رب ده ته کله وشو هجرت نه بعد چې کله مدينې منورې ته راغي نو امر وشو چې دا ووايه نو عبارت له منزل مبارک نه مدينه منوره شوه مدينې منورې ته مبارک وويلې شو او هر مسافر چې يو ځاى ته لاړ شي په وخت د نزول کې به دا دعا کوي:
﴿رَّبِّ أَنزِلْنِي مُنزَلًا مُّبَارَكًا﴾.
دا نسبت د مبارک شوې ده.
سورة سورة ق آيت: ۹:
﴿وَنَزَّلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً مُّبَارَكًا فَأَنبَتْنَا بِهِ جَنَّاتٍ وَحَبَّ الْحَصِيدِ﴾
نو دلته اوبو د اسمان ته د مبارک نسبت شوې او به مخلوق دي.
دارنګې سورة النور آيت: ۳۵:
﴿اللَّهُ نُورُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ مَثَلُ نُورِهِ كَمِشْكَاةٍ فِيهَا مِصْبَاحٌ الْمِصْبَاحُ فِي زُجَاجَةٍ الزُّجَاجَةُ كَأَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ يُوقَدُ مِن شَجَرَةٍ مُّبَارَكَةٍ زَيْتُونَةٍ لَّا شَرْقِيَّةٍ وَلَا غَرْبِيَّةٍ يَكَادُ زَيْتُهَا يُضِيءُ وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ نُّورٌ عَلَىٰ نُورٍ يَهْدِي اللَّهُ لِنُورِهِ مَن يَشَاءُ وَيَضْرِبُ اللَّهُ الْأَمْثَالَ لِلنَّاسِ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾.

دارنګې سورة النور آیت : ٦١ :

﴿ فَإِذَا دَخَلْتُم بُيُوتًا فَسَلِّمُوا عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِّنْ عِندِ اللَّهِ مُبَارَكَةً طَيِّبَةً كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴾ .

دارنګې سورة الدخان آیت : ۳ :

﴿ إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ إِنَّا كُنَّا مُنذِرِينَ ﴾ .

شپې ته د مبارک نسبت وشو .

دا چند استدلالات د قرآن کریم نه ددوي هغه دعوی باطلوي چې نسبت د مبارک غیر الله ته شرک دي دا جهالت او حماقت ددوي ده شپه ورځ ترجمې د قرآن کریم کوي خو قرآن کریم نه رانده دي چې قرآن کریم او بو ته منزل ته قرآن کریم ته مکي معظمې ته وغیره وغیره ته نسبت د مبارک کړې دي .

دارنګې سورة بقرة آیت : ۲۴۸ :

﴿ وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ آيَةَ مُلْكِهِ أَن يَأْتِيَكُمُ التَّابُوتُ فِيهِ سَكِينَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ آلُ مُوسَىٰ وَآلُ هَارُونَ تَحْمِلُهُ الْمَلَائِكَةُ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴾ .

د طالوت علیه السلام قوم راغي شمعون علیه السلام ته وایي مونږ ته یو بادشاه مقرر کړه چې د هغه په معیت کې به مونږ جهاد کوو .

نو هغه ورته وویل ستاسو بادشاه به طالوت وي هغه مسکین غریب سړي وه دا نه شي کیدي ځکه دې مالدار نه دي مونږ ته یو دلیل پیش کړه څه علامه به وي جالوتیانو دوي نه هغه تابوت پټ کړې وه هغه یې ډیران کې اچولې وه او عمالقه وو حکم کړې وو چې دې ته بول کوي بې عزتي یې کوي بې عزتي یې د آثارو د صلحاو کړې وه .

تفسیر صاوي دغه ځای کې لیکلي چا چې هلته بول کړې وه په سلسل بول مبتلا شو ځکه بې ادبي د آثارو د صالحینو یې کړې وه .

دغه صندق کې څه شي وه مختلف اقوال دي :

زاد المسیر في علم التفسیر جلد ۱ صفحه ۲۵۲ :

والمراد من البقیة إما عصا موسى و عصا هارون وثیابهما و لوحان من التوراة والمن قاله

ابوصالح عن ابن عباس .د موسی علیه السلام همسا وه د هارون علیه السلام همسا وه د دواړو جامې

وي لوحان من التوراة والمن تکړې د من وي دا ورکې پراته وه .

شمعون علیه السلام قوم ته دا وايي :

ان اية ملكه رابه شي تاسو ته تابوت دا داسې تابوت ده فيه سكينة دې کې سکنيه

اطمينان ده من ربكم جهاد کې به چې کله ورانده کړي وه اطمنيان کې به وه شکست به يې نه

خوړ اضطراب يره به نه وه دا صندوق به مخکې وه او چې دا يې ترې پټ کړ بيا به هغوي پرې

غالب کيدل دوي کې به شکست ګډيده او دغه تابوت هغه تابوت ده چې و بقية مما ترک چې

دې کې بقيه ما ترک ده له هغه څه نه چې پريښې وو .

الُ موسى نفس موسى و آل هارون نفس هارون .

تاسو به جامي کې ويلې وي هغلته دې چې آل لپاره چند معاني دي يو په کې معنی د

نفس ده نو آل موسى معنى نفس موسى ونفس هارون خپله د موسی علیه السلام خپله د هارون

علیه السلام مابقيه په کې وه قرآن کريم خو وويل چې د موسى او هارون مايبقه وه په کې اوس دا

مابقيه څه شي ده . د زاد المسير في علم التفسير حواله مذکوره شوه مخکې .

تحمله الملائكة .باره وي به دې لره ملائک هغوي چې د چا کور کې کيخود هغه به

بادشاه وي د طالوت علیه السلام کور کې کيخودې شو .

استدلال دې نه په دې طريقه باندې چې طرز او طريقه ددوي د جهاد ده او وه دغه

تابوت چې کوم کې د موسى علیه السلام همسا وه د هارون علیه السلام همسا وه جامې د دواړو په

کې وي .

يو عبارت کې عمامه هم راغلې دا به دوي د لښکر مخکې روان کړې وه .

داستنصار من الله ببركة ثيابهم .

د جامو همساګانو دغه تبرک ده بآثار الصالحين بې آدبي د دغه تبرکاتو چا کړې وه

جالوتيانو عمالقه وو آدب احترام ددې چا وکوه فرشتو وکړه فرشتو راوچت کړ د طالوت

علیه السلام کور کې يې کيخود دليل په دې خبره شو چې د آثار الصالحين قدر احترام دا وظيفه د

چا وه د ملائکو مامور من عندالله وي .

او د آثار الصالحینو بي عزتي کول بمونه په کې آلوزول نوره بي حرمتي یې کول داد جالوتیانو عمالقوو عمل دي زما په خیال دغه اوسني بې ادبه هم د هغوي اولاد ده نو دوي هم دغه کار کوي .

دارنګې بل نص سورة یوسف آیت : ۹۳ :

﴿ اذْهَبُوا بِقَمِيصِي هَٰذَا فَأَلْقُوهُ عَلَىٰ وَجْهِ أَبِي يَأْتِ بَصِيرًا وَأْتُونِي بِأَهْلِكُمْ أَجْمَعِينَ ﴾ .

دوي کله وایي چې دا تبرک به و منم خو دا تاسو د شفاء لپاره استعمالوي د یو نیک سړي زیارت سره مالګه نمک د شفاء لپاره استعمالوي او یا د هغوي ما بقیه د آثارو د شفاء په طور استعمالوي دا درسره نه شو منلې .

نو ددې جواب داده اذهبوا بقمیصي هذا د یعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ د سترګو نظر چې کله لاړ ورونو د یوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ مینځ کې معرفت وشو حکایت وشو چې د والد صاحب د سترګو نظر دي تللې دي هغه ورته خپل قمیص راوباسي دا قمیص چرته وه داد یوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ په غاړه باندې یو تعویذ وه هغه تعویذ کې یې بند کړي وه . تفسیر در المنثور في التفسیر بالمأثور جلد ۴ صفحه ۵۸۰ جلد ۸ صفحه ۳۲۵ .

ان الله کسا ابراهیم ثوباً من الجنة . دا یوه جامه باري تعالی ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته جنت نه ورکړې وه .

فکساه ابراهیم اسحاق . واغوستله ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ اسحاق عَلَيْهِ السَّلَامُ ته اسحاق عَلَيْهِ السَّلَامُ یعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ ته ور واغوستله .

فاخذه یعقوب فجعله في قصبة حدید . واخیستله یعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ وایي چوله په یوه بکسه د اوسپنه کې .

وعلقه في عنق یوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ . واي چوله په غاړه د یوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ کې .

دې قمیص کې څه کمال دي چې په غاړه د یوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ کې اچولې شي یو خو د جنت نه راغلې دا هم کمال دي د جنت نه د راتللو مطلب خو ګڼې دا نه شو چې خالق ده خالق خو نه دي مخلوق ده جنت هم مخلوق دي خو بیا دا د بهترینو انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ له وجودونو سره لږېدلي

ددوي د وجود سره چې ولړيده نو د برکت نه ډک شو .

يعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ دغه برکتي قميص د اوسپني قصبه کې بند کړ د هغې زمانې قميص چې په کې بنديږي نو دا تعويذ به څومره غټ وه .

اوس که يو عالم قرآن کريم ليکي چې نص پرې ګواه ده .

و ننزل من القرآن ما هو شفاء .

نو چې شفاءِ دم نه وي شفاء ثابت نه وي شفاء تعويذ نه وي نو قرآن کريم څنګه شفاء ده د امراضو شفاء به پرې څنګه کيږي نو چې دوي يې نه دم مني نه تعويذ ثابت مني .

څلورمه شفاء دي دوي مونږ ته وښائي او مفسرين ټول متفق دي شفاء باطني ظاهري لره نو زمونږ تعويذونه وړوکي وي قرآني آيتونه پرې ليکل شوې وي قران کريم شفاء ده او تعويذ غاړه کې اچول شرک دي دوي وايي نو يعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ آسمان نه نازل شوې کتاب پر ځاى د انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ قميص غاړه کې ورته اچوي .

دا هُو بَهُو داسې شوه چې زيارت نه جنډه را خلاصه کړي يا غلاف يا د يو ولي الله قميص يا څادر يو ټوټه د برکت لپاره واخلي او بچي ته يې غاړه کې واچوي که داسې وکړي نو څه فتواى به ولړوي درباندې .

دا نقشه د فتوو د شرک يهودو جوړه کړې دوي ته تر شاه يهود ناست دي او يهود ټول دين زمونږ نه خبر دي هغوي دا نقشې ورته جوړوي دوي طوطيان د بل چا خبرې کوي يو ه خبره خپله نه شي کولې او نه دا قوه لري د اسلام په جامه کې دې بې ديني ته اړوي .

حسن جان صاحب به ويل او علامه کوثري هم ذکر کړي :

الامذهبية قنطرة اللادينية .

د مذهب نه وتل د بي ديني پول ده چې د مذهب وتي نو د بې ديني په پول روان شوې يهوديت ته لاړې او که عيسويت ته لاړي ځي به خامخا .

**حکايت** : زما يو ملګرې وه د کونړ د پيچ درې هغلته وهابيان ډير زيات دي هغه وويل چې مونږ پاکستان ته را مهاجر شو ډير وخت وروسته زه پلار وليږلم چې لاړ شه د ځمکې حساب له دهقانانو سره وکوه هسې نه چې منکر شي .

وايي زه لاړم هلته هغه خلکو زما ډير عزت وکوه کله چې ماخوستن شو آذان وشو نو دا خلکو ما ته وويل چې لاړ شه مونځ دې وکوه ما ورته وويل چې تاسې ولې نه ځي هغوي وويل ځه ته لاړ شه بيا به د مانځه نه وروسته خبرې کوو .

وروسته چې کله راغلم خبرې مې ورسره وکړې نو دوي وويل مونږ خپل د عبادت ځای لرو عيسويان شوې وه او د عبادت لپاره يې ځان ته ګرجه جوړه کړې وه اول مسلمانان وه حنفيان وه وروسته بيا وهابيان شوې وه آخر کې عيسويت ته اوښتي وه دا ټول اهل حديث عيسويان شول هغوي ته کار کوي .

قلم الدين د افغانستان د تبليغي جماعت مشر وه دې ونيول شو د طالبانو د حکومت لخوا سره د کتابونو د عيسويت ۷ مياشتې جيل کې پروت وه ، او ۳۰۰۰ کتابونه د عيسويت يې په کور کې پيدا شول .

مولانا عبدالحي زعفراني صاحب هغه وخت د افغانستان سترې محکمې په قضاء کې وه هغه دا قصه ما ته خپله کړې هغه وويل چې مونږ ارمان کوه چې د قلم الدين دوسيه مونږ ته زر راشي چې د اعدام فيصله پرې وکړو خو جواسيس هر چيرته د هر چا په جامه کې وي .

مونږ ته راتلو نه مخکې فيصله پرې وشوه چې قلم الدين دې جلا وطن شي نو د طالبانو د حکومت آخري درې کلو کې دې جلا وطن وه د سرکاري قضاء په فيصله باندې خلک سترګې پټوي حق نه وايي ، بيرته بيا جلال آباد کې د تبليغي مرکز لپاره ځمکه ورکړل شوه .

نو دا سوچ نه کوي چې د امير وظيفه يې د عيسويت اشاعت وه نو بيا ولې ځای ورکوي دوي ته وايي نه داد يو کس کار وه دا نور بنه جماعت ده هيڅ وجه نه وه .

امارت کې مشران علماء شاګردان د ديوبنديانو وه او ديوبند علماء نه خراب اشخاص چې راوتلي د تبليغي جماعت ده چې دلته پاکستان کې يو جماعت کې ننوتي که بيا هغه خلک کفر هم وايي خو ته به د جماعت له لاسه خبره نه شي کولې ځکه ديوبندي دي .

ټول بريلیان د تبليغي جماعت سره خلاف دي په څه خلاف دي دا وايي د جبريت عقيده خوروي په څه خلاف دې ددوي په تندو کې وايي توره ټاپې دې په څه خلاف دي دوي وايي ښځې تبليغ ته بوځې په څه خلاف دي دا اميان دي دامي تبليغ حرام دي .

بيا تبليغي جماعت کې دعوت اسلامي پيدا شو تبليغي جماعت والا تندي کې يوه

تاپه لري دعوت اسلامي والا درې تاپې لري : الله نه د کيدو يقين دوي هم وايي هغوي هم وايي ، د بنځو جماعتونه تبليغ ته هغوي هم ځي دوي هم ځي يو ميشن يوه قصه ده يوه ځي روزه چيله چهارماه ده اوس په دنيا کې بريالي ملا ته ورکه قسم چې ګوري دا غلط خلک دي.

وايي نه چي دا درود وايي صلاة سلام مني بس غږ هم نه کوي که څو مره هم ګمراه دي هغه عقيده لري خو څه نه وايي ځکه هلته د بريااليت تاثير ده دا ديوبند علماء چې غلي پاتې صرف په دې خبره چې دا د ديوبند نه دي ځکه هغه الياس چې وه ديوبند کې څلور کاله منشي پاتې شوې وه د هغه تأثير د لاسه د ديوبنديانو خوله بنده ده .

دغه دوه ډلو کې چې داخل شوې که ديوبندي شوې نو د ديوبند غلطي ته به هم غلطه نه وايي او که بريالي شوې هم د هغوي غلطي ته به غلطه بيا نه وايي .

نو ځکه مونږ سوال کوو طالبانو ته چې دا مسلکونه يا مذهبونه مه کځي او په دې مينه مه مستيږي که يو چا دعوی د ديوبنديت کوله نو که سم حنفي وه مني يې که حنفي نه وه مه يې مني .

او که بريالي وه هم دغسې ده خو بيا به موماغوندي موافقين کم وي هر څوک به مو مخالف وي .

د تبليغي جماعت چې کله په کابل کې اجتماع وه نو حامد کرزي ورته دوه جريبه زمکه ورکړه زما يو شاګرد وه ددې اجتماعاتو ډير شوقي وه نو هغه ما ته وويل چې کله زه هلته ورغلم نو بهر تالاشي امريکايانو کوله .

وايي چې کله دننه لاړم نو قلم الدين ژوندي وه دې مينځ کې ناست وه يو خوا زلمي خليل زاد ناست وه بل خوا کې يې حامد کرزي ناست وه دا مشران د تبليغي جماعت دي اوس که دغلته يو شيخ ناست وايي د طريقت نو څومره مخالفتونه د دغه شيخ به شوې وه .

قسم قسم فتواې ګانې به خلکو ورکړې وي څومره مخالفتونه به يې خلکو کړې واي خو چې د تبليغي جماعت مشر ناست وه او دا جماعت له ديوبند نه راوتلي نو خلک چپ ناست دي بنه خبر دي چې دغسې قصه روانه ده .

نو د هغه تعويذ باره کې مفسرين متفق دي چې د يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ غاړه کې پروت وه .
كذا في تفسير القرطبي جلد ۹ صفحه ۲۵۸ ، کې هم دا عبارت مذکور ده .

دارنګې فتح القدير للشوكاني جلد ۴ صفحه ۶۹ :

**وكان يعقوب ادرج هذا القميص في قضيب وعلقه في عنق يوسف .**

ځکه :

**لما كان يخاف عليه من العين .**

دلته يې وجه هم ثابته شوه چې غاړه کې يې ولې ورواچوه ځکه چې د نظر نه بچ شي نو د آثارو په صلحاء کې نيت د شفاء وساته خالق شفاء ورکوي خو اسبابو کې يې دا استعمال کړ.

مفاتيح الغيب جلد ۱۸ صفحه ۴۲۷ کې هم دا عبارت شته تفسير الرازي او تفسير الكبير ورته هم وايي .

دارنګې في الكشف والبيان عن تفسير القرآن جلد ۵ صفحه ۲۵۴ :

**فدفعه ابراهيم الى اسحاق واسحاق الى يعقوب فجعله يعقوب في تميمة وعلقها في عنق يوسف .**

تميمه تعويذ ته دوي وايي کنه لکه وايي :

**التمائم من الشرك** . چې وايي نو دا تميمه تعليقاتو ته وايي غاړه کې يو شي اچول .

همدغه عبارت موجود ده په تفسير السمعاني جلد ۳ صفحه ۶۲ کې .

دارنګې په تفسير الكشاف مع الحواشي موافقاً للمطبوع جلد ۲ صفحه ۳۵۰، ۴۵۰، او تفسير النسفي جلد ۲ صفحه ۵۸ روح المعاني جلد ۶ صفحه ۳۸۹ .

**وفي روح المعاني جلد صفحه :**

**وكان يعقوب عليه السلام قد علقها في عنق يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ اذا كان صغيراً كما يعلق الناس اليوم في اعناق اطفالهم التمائم .**

دارنګې دا عبارت موجود ده په تفسير زاد المسير جلد ۳ صفحه ۴۰۶ دارنګې تفسير المنير للزحيلي جلد ۱۳ صفحه ۶۱ تفسير ابي السعود جلد ۳ صفحه ۴۱۰، تفسير خازن نسخة محققة جلد ۲ صفحه ۵۱۶، تفسير الرازي جلد ۱۸ صفحه ۸۰، مراح لبيد لكشف معنى القرآن المجيد جلد ۱ صفحه ۵۲۵، غرائب القرآن رغائب الفرقان جلد ۴ صفحه ۶۹ بحر العلوم

جلد ٢ صفحه ٣٩٦ .

نو په دې سره دفع د اعتراض ددوي وشوه چې دوي وويل تبرک به ومنو خو د شفاء لپاره يې استعمال نه منو د هغوي آثار په نيت د شفاء جائز نه دي نو دلته يو پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ اثر د صالحينو چې قميص دي د شفاء په نيت استعمال کړي .

نو بيا يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ دغه قميص را واخيست ورونو ته يې ورکړ چې دا زما د پلار په مخ واچوي نو دوي سره بيا دلته بله خبره نه وي وايي دا خو د مفسرينو خبرې بلاسند دي دا خو مونږ نه شو منلې .

ښه ده دا مه منه دا خو منلې شي چې اذهبوا بقميصي بيا خو خلاصه شوه دا دده قميص ده له سره جنت نه راغلې نه ده چې هغه مخکې قميص د اسلافو نه ده چې دا نه مني صحيح ده مه يې منه چې دا قميص بيخي د جنت نه راغلي نه دي انبياو نه دي استعمال کړي نو دا خو به مني چې دا دده خپل قميص ده څکه څان ته يې منسوب کړي دا واخلي :

﴿ فَأَلْقُوهُ عَلَىٰ وَجْهِ أَبِي يَأْتِ بَصِيرًا ﴾ .

هغوي قميص را روان کړ بله مسئله ثابتيږي يعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې بوي ولږيده نو کشف ثابت شو اول يې بوي ولږيده :

﴿ إِنِّي لَأَجِدُ رِيحَ يُوسُفَ لَوْلَا أَن تُفَنِّدُونِ ﴾ .

که نسبت د کم عقلي راته نه کوي د يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ بوي راباندې لږيږي هغوي جواب ورکوي :

﴿ إِنَّكَ لَفِي ضَلَالِكَ الْقَدِيمِ ﴾ .ته هغه پخواني بحر د محبت خپل بچي يوسف کې سرګردانه يې .

ضلال دلته په معنى د تحير في بحر العشق سره ده .

نو نص پرې ګواه دي :

﴿ أَلْقَاهُ عَلَىٰ وَجْهِهِ فَارْتَدَّ بَصِيرًا ﴾ .

واچوو دغه قميص د يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ بچو د يعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ په مخ د ده باندې وګرځيده وروسته له دې نه بيناء .

تو لا وس په شوق جواب راکړې دې ستر گو ته شفاء چا ور کړه ؟. الله .

خو شفاء الله په څه شي ور کړه الله قادر مطلق ذات ده بدون د سبب نه هم شفاء ور کولې شي خو اکثرا عادت داده چې په اسبابو يې ور کوي دې ځاى کې يې شفاء ور کړه په قميص د يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې نسبت د دې شفاء قميص ته مجاز ده نسبت يې الله تعالى ته حقيقت ده :

﴿ وَإِذَا مَرِضْتُ فَهُوَ يَشْفِينِ ﴾ . دا حقيقت ده ليکن :فيه شفاء للناس .

ضمير په فيه کې ( عسل ) شهدو ته راجع دې شهدو کې د خلکو لپاره شفاء ده .

اوس قران کريم نسبت د شفاء شاتو ته هم کړې او خپل ځان ته يې هم کړې نو خپل ځان نسبت د شفاء حقيقت او شهدو ته مجاز او سبب دا په کې سبب وي نو دغه شان دغه قميص هم ده اثار او تبرکات هم دي .

**د زيارتونو مالکه** :په حديث کې راځي مالگه د اويا (٧٠) مرضونو شفاء ده زيارت کې يې مه پرده ديو دوکان نه يې راواخله د اويا (٧٠) مرضونو شفاء ده بيا چې مزار د صالح سره کيخود ل شوه رحمت پرې ووريده . څه دليل دي چې رحمت پرې وريږي :

﴿ إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِينَ ﴾ .

دا محسن صوفي ده ځکه مزار چې په چا جوړيږي دا اولياء وي نو دغه اولياء صوفيانو سره رحمت قريب وريږي چې ووريده نو مالگه باندې هم ووريده نو شفاء نوره هم زياته شوه .

دغسې لکه څرنگه چې يو څوک لاړ شي د ډاکټر ميډيکل ته ورته ووايي چې ما ته د سر درد گولې راکړه نو شفاء خو الله ور کوي خو دا گولې يو سبب ده نسبت د شفاء گوليو ته مجاز ده دغه رنگې لکه اوس بعضې زيارتونه خلک وايي داد فلانکي مرض لپاره ده او داد فلانکي مرض لپاره . په دې خلکو کې داسې مشهوره ده خير ده هيڅ خبره نشته ديکې زه خپله دغسې زيارتونو ته تللې يم .

يو ځل ما باندې دانه وه او ډير ترې نه په تکليف وم يو انجکشن به مې سحر ځان ته لږوله يو ما ښام د دردونو ، د ربيع الاول مياشت هم وه زما پروگرامونه هم ډير وو چا راته وويل چې شبقدر کې يو زيارت ده فولاد بابا د دانو زيارت چې څوک ورشي الله پاک ورته شفاء ور کوي .

ما هغه ډېر ورته وویل څه چې لاړ شو تاسې یقین په الله وکړي چې زمونږ ګاډي د زیارت طرف ته ورتاؤ شو ما ته احساس وشو درد مې کم شو زیارت ته چې کله ننوتو نو یو ملنګ په کې ناست وه ما ته یې دري څابنتونه راکړه.

زه خپله هم ډېر شکي یمه او د دې ابجد و تعویذونو چې په مطلب یې څوک نه پوهیږي مخالف یم لکه ۱-۲-۳ یا الف-ها-همزه دغسې نور د تعویذ والا خپله هم د دې په معنی نه پوهیږي چې دا څه دي په کې هندوانو جوړ کړي یا مسلمانانو جوړ کړي دا پته یې هم نه لږیږي له دې نه زیات ځان ساتي چې د معنی پته یې نه لږیږي.

اوس لکه ٦٨٧ دا خو صحیح ده بسم الله شوه خو چې پته د رته نه لږیږي نو ځان ترې ساتي.

نو چې ما ته یې څابنتونه راکړه ما چې وکتل نو بسم الله په کې لیکل شوې وه نو هیڅ مې هم ونه ویل ځکه دا خو د خدای تعالی کلام دي دوي سره به دې کې اجازه وي، یوه دانه مې هغه ځای کې وڅکه الله پاک راته شفاء راکړه په واسطه د دغه زیارت نو دا کیږي.

او په تورډیري کې محمد شعیب تورډیري رَحِمَهُ اللهُ په دانو کې ډېر معروف ده هغه ځای کې هغه تهانګي والا اوس هم ژوندي ده ما ته د هغه ځای سپین ګیرو حکایت کولو چې د پنچپیر ملا طاهر هیڅ کوناتې باندې دانه راختلې وه ډېر اخوا دیخوا ګرځیدلي وه خو نه وو نه شوې د شپې ناوخته یې تهانګي والا راویخ کړي چې ما تورډیري زیارت ته بوځه. تهانګي والا زیارت ته بیولي وه وایي چې واپس مې راوسته تول سیټونه یې راته لړلې وه.

دومره وینه او زوې ترې تلې وي دانه یې ختمه شوې وه نو ما وایي ورته وویل چې شیخ صاحب تاسو خو دې ته شرک وایي کنه نو ده وایي وویل چې نه دا خلک غلوه او افراط کوي چې په دې پوه شي چې دا اسباب دي نو مونږ بیا څه باک نه کوو دې باندې.

نو هغه تهانګي والا بیا دا خبره خاصو عامو کې نشر کړه چې ګوري شیخ صاحب د ورځې یوه خبره کوي او د شپې بیا خپله زیارتونو پسې منډې وهي.

نو که دوي وایي چې څه تبرک به ومنو خو د شفاء لپاره یې نه منو نو مجازاً نسبت د شفاء دغه آیت نه ثابتیږي.

او کله دیو ولي الله زیارت سره خوا کې یوه چینه وي او خلک ځي جلد مریضان جلدي

تکلیف والاهلته هغه چینه کې لامبي د شفاء په نیت د جلدي مرض لپاره شفاء ګرځي نو داخو رسره بیخي نه مني دا خو وایي سو چه شرک ده.

هغې لپاره به تاسو دلیل کې دا پیش کوي د درویشتمې سیپارې آیت:

﴿ارْكُضْ بِرِجْلِكَ هَٰذَا مُغْتَسَلٌ بَارِدٌ وَشَرَابٌ﴾. سورة ص آیت: .

ایوب عَلَيْهِ السَّلَامُ ته جلدي تکلیف وه او وهه خپه باندې دغه ځای چینه به راپیدا شي دا مغتسل بارد ده او دا او به وڅکه او پرې ولامبه صحت به درشي ایوب عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه او به وڅکلي هغه او بو کې یې ولمبل شفاء ورته ملاو شوه.

خالق په غیر ددې او بو نه هم شفاء ورکولې شوه هغه چینه اوس هم مسقط عمان کې شته ده سلاله ورته وایي اوس هم شته دي او ما یې لیږې او به پاکستان ته هم ځان سره راوړې وي او هلته روزمره په سلګونو جلدي مریضان د دنیا له ګوټ ګوټ نه ورځي چې په هغه چینه کې ولامبي الله پاک صحت ورکوي د قرآن عظیم نص پرې ګواه دي.

ایوب عَلَيْهِ السَّلَامُ پرې لمبلي وه بنه شوې وه هغه چینه د هغه د خپې له وجې نه راوتلې وه اوس که یو سړي وایي چې هغه ته خو امر شوې وه او که بل سړي لامبي شرک دې دا خو نه شي کیدې چې یو شي دې یو شخص ته دې شرک وي او بل ته دې توحید وي.

او بل دا چې اهل حدیث وهابیان لاړ شي حج ته د اوبو د زمزم نه دوي هم بوشکې را ډکې کړې وي او دلته یې د برکت لپاره څکي.

نو دغه او به خو د جنت نه، نه دي راغلې زمزم اوبو کې څه کمال ده که سوچ وشي داد اسماعیل عَلَيْهِ السَّلَامُ پوندې سره تعلق لري او اسماعیل عَلَيْهِ السَّلَامُ پیدائشي پیغمبر نه وو بعثت یې وروسته شوې تول انبیاء د بعثت نه مخکې اولیاء وي نو د زمزم اوبو تعلق د یو ولي د پوندي سره دي هغه د برکت لپاره استعمالوي شرک نه ده او که د یو بل ولي زیارت سره او به د برکت لپاره استعمال شي شرک ده نو دا فرق چا کړي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمایي:

ماء زمزم لما شُرب. او به د زمزم شفاء ده د څه لپاره چې وڅکل شي نو او به مخلوق دي بیا مخلوق د یو ولي د قدم سره تعلق لري او هغې نسبت د شفاء او برکاتو کیدې شي خو مؤثر حقیقي به یې نه ګڼي.

شرک دې ته نه وايي چې اسباب استعمال شي بلکه شرک داده چې ته دغه سبب مؤثرِ حقيقي وګڼې او که دا سبب مؤثر حقيقي نه ګڼي بلکه مؤثرِ حقيقي الله جَلَّجَلَالُهُ ګڼې دا اسباب محضه وګڼي نو څه باک نشته .

بل دليل سورة بقرة آيت : ۲۵۱ :

﴿وَلَوْلَا دَفْعُ اللهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ الْأَرْضُ وَلَـٰكِنَّ اللهَ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْعَالَمِينَ﴾

که نه واى الله تعالى دفع کړي خلکو لره بعضي په بعضې نورو خامخا ځمکه به فاسده شوې وه ليکن الله فضل کوونکي ده په عالم باندې آيات دا ثابت کړل چې بعضې خلک مدفوعين دي او بعضي مدفوع بهم الفساد دي .

د بعضې خلکو په برکت سره فساد بعضې نورو نه دفع کيږي دفع کوي يې خالق خو بعضې يې د بعضو لپاره اسباب کړل . دې کې علماء اختلاف لري :

الناس لمدفوع بهم الفساد .

څوک دي اشاره دې کې چا ته ده چې د هغوي په وجه فساد دفعه کيږي يو قول داده چې دا مجاهدين دي رشتيا که مجاهدين نه وايي فساد راته کفار به راغلي وو ستا به يې هر څه ختم کړي وه لکه مسجد ونه مدرسې نور ديني مقدسات .نو بعضې مفسرين وايي :

الناس المدفوع بهم الفساد .

مجاهدين دي ددوي د جهاد په برکت سره خداى تعالى دا ځمکه د فساد نه بچ کوي نو مجاهد به مفسد نه وي دافع د فساد به وي .

سوات کې هم مجاهدين پيدا شوې وه باره کې هم وه نو دا خو مجاهدين نه دي دا خوارج دي .

دويم قول د حضرت علي کرم الله وجهه چې :

الناس المدفوع بهم الفساد .

ابدالين اولياء دي .

تفسير القرطبي جلد ۳ صفحه ۲۵۹ :

واختلف العلماء في الناس المدفوع بهم الفساد من هم فقيل هم الابدال وهم اربعون

رجلاً كلما مات واحد بدل الله آخر فإذا كان عند القيامة ماتوا كلهم اثنان وعشرون منهم بالشام وثمانية عشر بالعراق.

په عراق او شام کې يې پيدا ائش وي نور ګرځي ټوله دنيا کې.

وروي عن علي رضي الله عنه قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: ان الابدال يكونون بالشام وهم اربعون رجلاً كلما مات منهم رجل ابدل الله مكانه رجلاً يسقى بهم الغيث.

باران چې کيږي په خلکو بهم بيركتهم، دا باء د بركت تيمن لپاره ددوي په بركت باران كيږي.

وينصر بهم على الاعداء. مجاهدين چې په دشمنانو کاميږي ددوي په برکت؛

ويصرف بهم عن أهل الأرض البلاء. د خلکو نه مصيبتونه ددوي په برکت دفع کيږي.

ذكره الترمذي الحكيم في نوادر الاصول:

وخرج ايضاً عن ابي الدرداء قال ان الانبياء كانوا اوتاد الارض فلما انقطعت النبوة أبدل الله مكانهم قوماً من امة محمد صلى الله عليه وسلم يقال لهم الابدال لم يفضلوا الناس بكثرة صوم ولا صلاة ولكن بحسن الخلق وصدق الورع وحسن النية وسلامة القلوب لجميع المسلمين والنصيحة لهم ابتغاء مرضاة الله بصبر وحلم ولب.

داد ابدالو حالات ما کتلي واي دا يو ځل کشتي کې سواره وه ډير عجيب خلک دي.

دلته يو شيخ هم سور ده د جمعې لمانځه ته روان ده دا عابد شيخ ورته وايي چې ما ديرش کاله کيږي چې روژه مې نه ده ماته کړي ديرش کاله مې مسلسل روژه نيولې د ځان تعريفات يې وکړل.

ابدالينو کې دا شخص غلي ناست وه يوه کهجوره يې راويستله په خوله يې کړه هغه شيخ ته وايي: قسم بالله دا يوه کهجوره ستا ديرش کاله روژي نه بهتره ګڼم چې ما وخوړله.

وايي دا ځنګه وايي ځکه دا کهجوره حلاله ده بدون شک او تا چې پيشمني کړي په مشتبهاتو دې کړي مونږ ابدالين چې يو اکل د حلال پسې ځان وژنو او مشتبه نه ځان ساتو.

دا ابدالان داسې خلک دي دا کثرة الصیام صوم دي قصو کې ډیر نه وي خپل مفروضات او مسنونات پوره کوي او د حرامو نه ځان ساتي.
نو دلته یو تفسیر دا شو چې مراد هغې نه ابدالین دي چې په برکت د هغو سره خلک د عذاب نه بچ کیږي او د عذاب نه خلاصیږي دا داولیاء صوفیاء خپل خپل اصطلاحات دي.
ابدال اوتاد غوثان نجباء نقباء صلحا او ددوي خپل خپل مقامات دي او په هغه کې ناسو هغه حدیث نه هم استدلال کولې شي:
لولا عباد لله تعالی رکع رکع.
که چیرته نه واي بندګان د خدای رکوع کوونکي مراد ترې نه علماء دي اولیاء دي.
وصبیان رضع وبهائم رتع لصب علیکم العذاب صبًا ثم رص رصًا.
مراد واړه ماشومان شید وربدونکي نه وایي او څاروي څریدونکي نه وایي او څاروي څریدونکي نه وایي شدید عذاب به راغلې واي نو لولا انتفاء د شيء ثاني له وجې وجود د شيء اول نه دا سخت عذاب چې نه راځي دا ولې واړه ماشومان شته د هغوي د برکت نه، نه راځي، ولې څاروي شته ولې عباد رکع شته.
بل دلیل د قرآن کریم نه سورة کهف آیت: ۸۲:
﴿وَأَمَّا الْجِدَارُ فَكَانَ لِغُلَامَيْنِ يَتِيمَيْنِ فِي الْمَدِينَةِ وَكَانَ تَحْتَهُ كَنزٌ لَّهُمَا وَكَانَ أَبُوهُمَا صَالِحًا﴾
دا دیوال چې خضر علیه السلام ورته جوړ کړ علت یې څه ده.
وکان ابوهما صالحاً په برکت د صلاح د نیکه ددوي باندې رب کریم خضر علیه السلام مامور کړ په جوړولو د دیوال باندې.
الدر المنثور في التفسیر بالمأثور جلد ۵ صفحه ۴۲۲ جلد ۹ صفحه ۶۰۴ دې ځاې کې:
واخرج ابن ابي حاتم عن ابن عباس رضي الله عنه قال ان الله یصلح بصلاح الرجل ولده وولد ولده ویحفظه في ذریته.
په صلاح د رجل سره خدای پاک بنه کوي بچي او بچي د بچي.

ويحفظه في ذريته والدويرات حوله . ساتي د هغه بنه سړي په برکت اولاد دده اوګرد چاپيره ګاونډ دده .

د ګاونډي باره کې بل حديث موجود ده چې :

مائة من جيرانه .سل ګاونډيان دده د يو رجل صالح له برکته سل ګاونډيان له عذاب نه محفوظ وي .

د ډاګي شيخ صاحب سره ناست وم چا ترې تپوس وکړو چې نيکان خلک برکت لري نوګرمي وه دده ته چا پکي وهلو نو تپوس يې ترې وکړو چې هوا درځي که نه ؟ هغه وويل چې هوراځي وايي دا پکي ما ته وهي که تا ته يې وهي وايي نه تا ته يې وهي .

نو شيخ صاحب ورته وويل تا ته څه خوند درغې که نه نو دا شخص صالح هم دغه شان وي نو دا چم ګاونډ ته د هغه برکات وي . نو وايي :

فما يزالون في ستر من الله وعافية .دا ګاونډيان د نيک شخص في ستر من الله وي او په عافيت کې وي .

بيا حديث پيش کوي :

واخرج ابن مردوية عن جابر قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان الله يصلح بصلاح الرجل الصالح ولده وولد ولده وأهل دويرات حوله فما يزالون في حفظ الله مادام فيهم .

ترڅو دا رجل صالح دوي کې وي د الله په حفاظت کې وي دده برکت شو .

واخرج ابن المبارك ابن ابي شيبة عن محمد بن المنكدر موقوفاً واخرج احمد في الزهد عن كعب قال ان الله يخلف العبد المؤمن في ولده ثمانين عاماً .

وايي د نيک سړي نيک بنده اتيا کاله خداى پاک خليفه وي يعنې ساتنه يې کوي د هغه له برکته اتياه کاله دا نسل نه خرابوي نو دا په دنياوي لحاظ سره ظاهري او عملي لحاظ سره خو بعضې زر خراب شي .

خو ليکن که تاسو هغه خرابي وګوري چې پلار يې بنه سړي وي که څوي هر څومره فاسق وي هم د هغه دنياوي عزت کوي هغه عزت دده لا برابر وي دا هغه برکت د پلار له وجې .

## المبحث الثالث : في اثبات التبرک من الاحادیث :

دې کې به د صحابه کرامو عمل د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره ظاهره شي دوي مبارکانو تبرکاتو په وخت د مصائبو او مرضونو کې تبرکات استعمال کړي په نیت د شفاء باندې په نیت د کثرت او زیادت باندې د تبرک استعمال کړي زیات روایات دلته مونږ پیش کوو :

د بخاري او مسلم نه چې هغه مسلم دي بیننا و بین الخصم د سند په لحاظ سره :

صحیح البخاري جلد ۷ صفحه ۱۶۰ که پاکستاني چاپ ګوري نو جلد ۲ صفحه ۷۵ باندې لیکي :

حدثنا مالك بن اسماعيل حدثنا اسرائيل عن عثمان بن عبدالله بن موهب قال ارسلني اهلي الى ام سلمة زوج النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . دې وايي چې زه خپلې بي بي ولیږلم ام سلمة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته :

بقدح من ماءٍ . لاس کې راکړه پیاله د اوبو .

وقبض اسرائيل چې راوي ده :

ثلاث اصابع من قصة فيه .

چې په هغه پیاله کې :

شعر من شعر النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

زلفي وي له زلفو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نو .

یو پیاله د اوبو ام سلمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره وه او په هغه کې اسرائيل راوي درې ګوتې ضم کړې چې هغې کې داسې زلفې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به پرتې وي او دا ام سلمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څه د پاره ساتلې وي .

وكان إذا أصاب الإنسان عين . مدینه منوره کې چې کوم انسان ته به نظر ورسیده .

او شيء . یا بله څه بیماري یا نظر یا بله څه بیماري .

بعث إليها مخضبه . څوک به یې ولیږه ام سلمې له مخضبه معنی یې په اجاني سره کیږئ لوخي ده .

فاطلعت في الجلجل. ما سر و ربنکاره کړ.

فرأيت شعرات حمرا. ما وليدلي څه زلفې سور بخنې رنګ يې سور وه.

نو چا استدلال کړي چې استعمال د نکريزو رسول الله ﷺ کړې وه.

واضحه دليل دادې چې بالفعل رسول الله ﷺ نکريزې نه دي استعمال کړي بلکه داد ويښتانو کمال او حسن وي چې سور بخنې لرېږي.

دلته دا معلومه شوه چې مدينه منوره کې چا ته بيماري وه نظريا بل څه بيماري هغوي ام سلمې رضي الله عنها کره تللي زلفې د رسول الله ﷺ اوبو کې وهلې شوې هغه يې ورکړې.

د شفاء په نيت د رسول الله ﷺ زلفې استعمال شوې.

دارنګې صحيح مسلم جلد ۴ صفحه ۱۸۱۵ پاکستان چاپ جلد ۲ صفحه ۲۵۷ انس بن مالک رضي الله عنه يې راوي دي:

كان النبي ﷺ يدخل بيت ام سليم فينام على فراشها اوليست فيها فجاء ذات يوم فنام على فراشها فاتيت فقيل لها هذا النبي ﷺ نائم في بيتك على فراشك قال فجاءت.

دا ام سليم راغله مور د انس رضي الله عنه.

وقد عرق. په داسې حال چې نبي عليه السلام خوله وه.

واستنقع عرقه على قطعة اديم على الفراش.

نو ټه د څرمن پرته وه په فرش د نبي عليه السلام خوله مبارکه څڅيده هغې ته.

ففتحت عتيدتها. بي بي خلاص کړ دسګوګل خپل.

فجعلت نو شروع شوه تنشف اچوله يې.

ذلك العرق فتعصره. نچوړلوه يې.

في قواريرها. په يو بوتل کې.

ففزع النبي ﷺ. په ويره راويخ شو نبي عليه السلام.

فقال ما تصنعين يا ام سليم؟. څه کوي ؟

فقالت يا رسول الله نرجو بركته لصبياننا.

وويل ام سليم اميد ساتو بركت ددې خولې ماشومانو ته.

قال أصبت. رحمة عالم ﷺ جواب ورکوي بي بي حق ته رسيدلې يې.

برکت ددې خولې دا وه چې کوم ماشوم به مريض شو نو دغه خولې به يې ورکولې ماشوم به ښه شو .

گورئ رسول پاک ﷺ رد پرې نه کوي چې نه داسې مه کوه بلکې ورته وايي:

أصبت. حق ته رسيدلې يې .

دا معروف چاپونه پاکستان کې چې دي د هغې په حاشيه باندې منهاج د امام نووي ليدلې هغه دې ځای کې باب لږوي : ﴿باب طيب عرقه النبي ﷺ والتبرك به﴾.

دريم روايت فتوح الشام جلد ۱ صفحه ۲۱۰ ، دې کې خالد بن وليد رضي الله عنه د يو پهلوان مقابلې ته وتلې :

قال الواقدي وخالد يقول حي حي فعلا البطريق على ظهر خالد في عثرته وقد سقطت قلنسوته من رأسه فصاح قلنسوتي رحمكم الله فأخذها رجل من قومه من بني مخزوم وناوله اياها فأخذها خالد ولبسها فقيل له فيما بعد.

وروسته چا ورته وويل د کافر سره د مقابلې په وخت دې ټوپې پسې ولې آوازو کړو؟

يا أبا سليمان انت في مثل هذا الحال من القتال وانت تقول قلنسوتي فقال خالد ان رسول الله ﷺ لما حلق رأسه في حجة الوداع أخذت من شعره شعرات.

راوامې خستلې څو زلفې .

فقال لي ما تصنع بهؤلاء يا خالد؟. ما ته نبي عليه السلام وويل ای خالده په دې څه کوي ؟

فقلت أتبرك بها يا رسول الله واستعين بها على القتال قتال اعدائي .

ما ورته وويل برکت پرې حاصلوم او په وخت د جنګ کې برکت حاصلوم په وسيله ددې

ويښتو نو دا زلفې د نبي عليه السلام د ذات نه جزء وي او جزء د ذات د نبي عليه السلام دا وسيله بالذات هم ثابته شوه.

**فقال لي النبي صلى الله عليه وسلم لا تزال منصوراً مادامت معك.**

دا زلفې چې څو پورې درسره وي تا سره به امداد کيږي.

**فجعلتها في مقدمة قلنسوتي.** هغه ما ايښي دي د ټوپي مخکې حصه کې.

دا زلفې يې په ټوپي کې تعويذ کړې وي.

**فلم الق جمعا قط الا انهزموا ببركة رسول الله صلى الله عليه وسلم.** يو جنګ کې هم مخامخ شوې نه يم مګر هغوي شکست خوړلې په برکت د زلفو د نبي عليه السلام سره.

دا رنګې بخاري جلد ۱ صفحه ۵۴ د پاکستان په چاپ کې صفحه ۲۹ جوړيږي:

**عن ابن سيرين عن انس رضي الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم لما حلق رأسه كان ابوطلحة اول من اخذ من شعره.**

اول زلفې ابوطلحه رضي الله عنه را واخيستې نورو رواياتو کې راځي چې نبي عليه السلام ده ته ورکړې نو دا زلفې د نبي عليه السلام د برکت لپاره دوي ساتلې وي.

دا اوس هم چې چيرته زلفې مبارکې د نبي عليه السلام دي نو په دې کې هيڅ شک مه کوي ځکه دا تقسيم شوې وي ټولو صحابوو باندې په حجة الوداع چا ته يوه چا ته دوه په ټولو توضيح شوې او هغوي قدرمن خلک وه دا يې بيا نه ضائع کولې نو همغه دي چې دنيا کې ګوټ ګوټ ته رسيدلې.

همدا رنګې صحيح مسلم جلد ۳،۶ صفحه ۱۶۴۱،۱۳۹ پاکستان چاپ جلد ۲ صفحه ۱۹۰، کتاب اللباس، روايت کې اختصار کوم مقصد ته راځم:

**عن عبدالله مولى أسماء بنت أبي بكر وكان خال ولد عطاء قال أرسلتني أسماء إلى عبدالله بن عمر فقالت هذه جبة رسول الله صلى الله عليه وسلم فاخرجت إلى جبة طيالسة كسروانية.**

راويستله يوه جبه طيالسة دا نسبت ده:

**لها لبنة ديباج.** څه حصه وريښم دې کې استعمال وو.

وفرجيها مكفوفين بالديباج . گريبان او نستورې يې په وريښمو جوړ شوي وو .

فقالت هذه كانت عند عائشة حتى قبضت فلما قبضت قبضتها وكان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يلبسها فنحن نغسلها للمرضى يستشفي بها .

مونږ دا وينځو داجبه بيمارانو ته شفاغواړو د الله په برکت دد ې جبې سره .

دلته منهاج ليکي :

في هذا الحديث دليل على استحباب تبرك بآثار الصالحين وثيابهم .

گوره هغوي پوهيږي چې شفاء خالق ورکوي خو د اسبابو استعمال منافي د توحيد سره نه دي .

دارنګې بخاري جلد ۱ صفحه ۲۹ ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ فرمايي :

فقال قلت لعبيدة عندنا من شعر النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

مونږ کره د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ويښته دي .

اصبناه من قبل انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ . د انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مونږ ته راپاتې دي .

او من قبل أهل أنس . شک راوي کړي .

فقال لأن تكون عندي شعرة منه أحب إليّ من الدنيا وما فيها .

عبيده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب ورکوي که ماسره يوه زلفه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وي ما ته د دنيا او آخرت نه غوره وه .

دارنګې الاصابة في تميز الصحابة جلد ۱ صفحه ۴۱۴ شفاء د قاضي عياض جلد ۱ صفحه ۲۱۸، تهذيب الاسماء جلد ۱ صفحه ۱۷۵ صفوة الصلاة جلد ۱ صفحه ۶۵۳ شرح د زاد المسلم فيما اتفق عليه البخاري والمسلم جلد ۵ صفحه ۶ نسيم الرياض شرح د قاضي عياض جلد ۳ صفحه ۱۳۳.

داټولو کتابونو د خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه روايت رانقل کړي په دغه مذکورو حوالو .

دارنګې صحيح البخاري جلد ۱ صفحه ۳۱ دې کې روايت ذکر کوي :

وإذا توضأ النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كادوا يقتتلون على وضوئه .
نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ به چې كله اودس كولو قريبه وه چې صحابه يو بل مړه كړي .
على وضوئه . په باقي مانده اوبو داودسه .
وُضُوء بضم الواو چار اندام ، وَضوء بدر الدين عيني ذكر كوي چې بقيه اوبو د اودس ته هم وايي او اوبو مستعملو ته هم وايي د اندامونو نه چې كومې اوبه ځاځي .
دغه اوبه به صحابوو ځمكې ته نه پريخودې لوته كې به يې له هغه نورو اوبو سره ګډې كړې او د بركت لپاره به يې په ځانونو مږلې .
نو دلته راځي كادوا يقتتلون قريبه وه چې دوي به يو بل وژل په بقيه اوبو د نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ د اوداسه باندې ، مطلب رش به جوړوه . دا واقعه د حجة الوداع ده .
همدا روايت بيا په كتاب الشروط جلد ۱ صفحه ۳۷۹ كې ذكر ده خو عبارت د فيتمسحون به ور سره زيات ده تمسح به يې پرې كولو .
دا رنګې بخاري جلد ۱ صفحه ۳۷۹ كې ليكي :
قال عروة عن المسور بن مخرمة و مروان خرج النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمن حديبية فذكر الحديث وما تنخم النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نخامة الا وقعت في كف رجل منهم فدلك بها وجهه وجلده الحديث .
تنخع دا تنخع بالعين التي يأت من الحلق . هغه څه چې د ستوني نه راشي بلغم ورته وايي .
تنخم بالميم : التي يأتي من الأنف . چې كوم د پوزې نه راشي .
دا محبت د صحابوو وو چې د نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ لاړې او بلغم به يې د تبرك لپاره خپلو ځانونو پورې مږلې دا د دوي مينه وه له نبي پاك عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ سره .
دا رنګې مسلم جلد ۲ صفحه ۲۰۹ دې كې باب د تحنيک د مولود لړيدلي ده :
باب استحباب تحنيك المولود عند ولادته وحمله الى صالح حنك .
وړل د ماشومانو نيک سړي ته چې تحنيک يې وكوي يعنې ګوته تالو ته وربنكته كړي .

ځنګ تالو ته ویلې شي لپاره ددې چې لاړې یا خوږ شي تالو ته ورسیږي .
نو دلته امام مسلم ډیر روایات را اخلي خو مجموعه د هغه روایاتو داده چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په زمانه کې هغه ته ماشومان راوړل شوې او هغه د برکت لپاره خوله کې لاړې ورته اچولې نو یو روایت د عائشې بي بي چې جامع ده تولو لره :

ان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كان يؤتى بالصبيان فيبرك عليهم ويحنكهم .

د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په وخت کې به چې ماشومان پیدا شول راوړل به یې نبي پاک صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته هغه په ورته د برکت دعا کوله او په خوله کې به یې لاړې ورته اچولې .
دا جامع شو ټولو لره .
نورو روایاتو کې د ماشومانو نومونه ذکر شوي دي لکه یو د هغې نه د عبد الله بن زبیر واقعه ده چې مور بي بي د هغه اسماء قباء ته په هجرت کې راغله نفاسه شوه وایي ما عبد الله بن زبیر صاحب راوسته نبي عَلَيْهِ السَّلَام لپاره لاړو اچولو په خوله دده کې .

فاخذه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منها فوضعه في حجره .

په غیږ کې یې کینوه واچوه :

ثم دعا بتمرة . کهجوره یې راوغوښتله :

قال قالت عائشة فمكثنا الساعة نلتمسها . مونږ کهجوره لټوله .

نلتمسها قبل ان نجدها .

هغه غریبي خپله ثابتوي کور کې یې کهجوره نه وه څه ډیر وخت دې کې تیر شو چې مونږ کهجوره پیدا کړه .

فمضغها . نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغه وچوپله .

ثم بصقها في فيه . بیا یې ورکړه سره د لاړو په خوله د زبیر کې هغه خوږوالي یې د ماشوم په خوله کې ورتل کړ سره د لاړو .

فان اول شيء دخل بطنه لريق رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . اول شيء چې خیټې د عبد الله بن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته داخل شوې لاړې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وې .

ثم قالت اسماء ثم مسحه وصلى عليه وسماه عبدالله.

داسې نور قصې هم شته خو جامع ورلره دا حديث د حضرت عائشې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ده .

امام نووي رَحِمَهُ اللَّهُ منهاج کې لاندې شرح کوي چې مستحبه دا شوه چې :

أن يكون المحنك من الصالحين و ممن يتبرك به رجلاً كان او امرأة فان لم يكن حاضراً عند المولود حمل إليه .

نو بل کلي چيرته بزرګ ته دې ويسي که خپل کلي کې يې بزرګ نه وه نو داد حقوقو لازموو نه شو که حق نه وي دومره تاکيد يې کله کوه چې بل ځای ته يې ويسه د بل کلي بزرګ ته .

همدا رنګې په روايت د مسلم کې راځي چې کله فرشتې ځمکې ته راشي لټوي مجالس د ذکر طويل حديث دي څه فرشتې رب کائنات ته وايي چې فلان عبد هم په لار تيريدو هسې کوم کار پسې راغلې وه هغه هم دې مجلس د ذکر کې ناست وه حديث کې راځي :

وله غفرت هم القوم لا يشقى بهم جليسهم . ده ته مې هم په کې بخښنه وکړه ځکه نه بدبخته کيږي ، هغه جليس د ذاکرينو سره .

بهم ببركتهم باء د تيمن تبرك سببيت د پاره شوه جليس د دوي اګر چه نيت بل څه وه مسلم شريف جلد ۱۳ صفحه ۱۹۶ .

هغه اعتراض دفع شو چې د غير معصوم تبرک نه منو ذاکرين خو معصوم نه دي .

دا رنګې امام مسلم جلد ۲ صفحه ۳۵۱ روايت نقل کوي :

وعن أبي هريرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قال قال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إذا سمعتم صياح الديكة .

کله چې د چرګ آذان واوري .

فسئلو الله من فضله . خدا تعالى نه دعا غواړي د فضل د هغه .

فانها رأت ملكا . دې چرګ فرشته ليدلې ده .

اذا سمعتم نهيق الحمار . او چې کله مو واوريد له رامباړه د خره .

فتعوذوا بالله من الشيطن فإنها رأت شيطاناً .

خو چې کله آواز کوي اعوذبالله وايي چرګ چې کله آذان کوي دعا کوي .

دلته استدلال داسې کوو چې چرګ آذان کوي نو دا دعا غواړي ځکه ده فرشته ليدلې ده او فرشته صالحه ده ، او کوم ځای کې چې صالح موجود وي دعا قبليږي د هغه له برکت نه .

نو معلومه شوه چې د نيک صالح په موجودګي کې دعا قبليږي برابره خبره ده چې صالح دنيا کې وي او که دنيا نه تللې وي .

په دې سره ددوي هغه اعتراض هم دفع شو چې کور کې دعا کوي مزار ته ولې ځي نو هلته ځکه ځو چې د نيک صالح سره خوا کې دعا بنه قبليږي هلته ځکه ځم صالح موجود ده .

دې ځای باندې امام نووي صاحب شرح کې ليکلي :

فيه استحباب الدعاء عند الحضور الصالحين والتبرك بهم .

دې حديث نه پته لګي چې دعا په وخت د حضور د صالحينو کې مستحب ده او تبرک د صالحينو هم ثابت شو .

دارنګې مسلم شريف جلد ٢ صفحه ٢٥٦ باندې ليکلي ، انس ابن مالک رضي الله عنه يې راواي دي :

قال كان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا صلى الغداة جاء خدم المدينة بآنيتهم فيها الماء فما يؤتى باناء الا غمس يده فيها فربما جاءوه في الغداة الباردة فيغمس يده فيها .

داد مدينې د انصارو عقيده وه، غلامان به يې مامور کړي وه په دې باندې چې جامونه ډک کړي مسجد نبوي نه بهر د نبي عليه السلام په لاره کې او ودريږي رسول الله صلى الله عليه وسلم مبارک به د سحر مونځ وکړو او کورته به روان وو لار کې به اخوا ديخوا غلامان ولاړ وه ډک جامونه به يې په لاس کې وه رسول الله صلى الله عليه وسلم مبارک به يو يو جام کې لاس بنکته کولو تيريده به .

دا جامونه به يې کورته راوړل او نورو اوبو سره به يې ګډې کړې انصارو به خپلو کورونو کې دغه اوبه استعمالولې داد ټولو صحابو د مدينې منورې عقيده د تبرک وه .

دارنګې بخاري جلد ١ صفحه ٣١ ابو موسى اشعري رضى الله راوي ده :

قال دعا رسول الله صلى الله عليه وسلم بقدح فيه ماء فغسل يديه ووجهه فيه ومج فيه .

نبي عَلَيْهِ السَّلَام پياله راوغوښته هغې کې اوبه وي لاسونه يې وويخل مخ يې هم وويخه بيا يې په هغې کې اوبه واچولې .

ثم قال. دلته بلال صاحب او ابو موسى صاحب دواړه ولاړ دي . نبي عَلَيْهِ السَّلَام ورته وفرمايل :

اشربا منه . وڅکې دا اوبه .

وافرغا على وجوهكما ونحوركما . بقيه چې پاتې شوې په مخ يې واچوي په سينه يې واچوي د برکت لپاره .

دارنګې بخاري شريف جلد ۱ صفحه ۵۰۳ بلال حبشي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په حجة الوداع کې خادم د نبي عَلَيْهِ السَّلَام وه :

خرج بلال فنادى بالصلاة ثم دخل. خيمې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ داخل شو .

واخرج فضل وضوء رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د اودس نه باقي اوبه يې راويستلې آوازيې وکړو چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د اودس مابقيه راسره دي .

فوقع الناس عليه يأخذون منه . شروع شول خلک د هغې نه يې اخذ کوه .

بل حديث کې وايي :

فيتمسحون به . په ځان باندې يې مږلې .

دارنګې مسلم شريف جلد ۱ صفحه ۱۶۰ باندې ليکلي دي : أسيد بن حضير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يې راوي دي عائشې بي بي ته شکايت کوي :

ماهي باول برکتکم يا آل ابي بکر .

اى د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اولاده دا ستاسو اولين برکت نه دي ستاسو خاندان نه دين اسلام ته ډير برکات رسيدلي يو برکت داده چې تا نه هار ورک شو په هغې کې تخفيف د تيمم راغې دې کې ورته نسبت کوي .

دارنګې بخاري شريف جلد ۱ صفحه ۴۱۳ باندې ليکلي دي : داد خيبر واقعه ده او هغه روايت ده چې فتحه د خيبر کيږئ زه به صبا يو کس ته جنډه ورکوم د هغه په لاس به فتحه

راځي :

فقاموا يرجون لذلك أيهم يعطى.

صحابه كرام ولاړ دي اميد ساتي چې کوم يو ته به جنډه ورکول کيږي .

فغدوا وکلهم يرجوا ان يعطى .

سحر کې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ آواز کوي :

أين علي؟ چيرته ده حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ؟

فقيل يشتکي عينيه . چا ورته وويل سترګې يې بيماري دي .

فأمر فدعى له . امر يې وکړو راوغوښتې شو .

فبصق في عينيه . په سترګو کې يې لاړې ورته واچولې .

فبرأ مکانه . سمدستي جوړ شو .

حتى کأنه لم يکن به شيء . تا به ويل چې بيمار نه وه .

فقال نقاتلهم حتى يکونوا مثلنا .

اجازت ده وژنم به يې تر هغې چې مونږ غوندې ايمان يې راوړې نه وي .

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته فرمايي :

على رسلك . لږ په دمه شه لږ په دمه څه .

حتى تنزل بساحتهم . چې د هغوي ساحې ته چې داخل شي .

ثم ادعهم إلى الإسلام . اول دعوت د اسلام ورکړه .

واخبرهم بما يجب عليهم . خبر يې کړه چې څه پرې لازم دي .

فوالله لان يُهْدى بك رجل واحد خيراً لك من حمر النعم .

چې ستا په وجه يو سړي ته هدايت وشي دا تا ته غوره ده له سرو اوښانو نه .

استدلال ده، د فبصق عينيه نه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ لاړې مبارکې د شفاء لپاره استعمال شوې.

دا رنګې بخاري جلد ١ صفحه ٤٤١ باندې ليکلي : باب برکة الغازي في ماله حياً وميتاً.

برکت د غازي په مال کې ژوندي وې او که مړ وي د امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ په نزد باندې د شهيد برکات شته دي نو دې مړي ته د برکت عقيده ساتي .

اهل حديث دې عقيدې ته شرک وايي .

امام بخاري پرې ترجمه کې باب لړوي بيا دې کې يو طويل روايت دي د حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه واقعه ده هغه بيانيږي .

دارنګې بخاري جلد ۱ صفحه ۵۰۱ :

عن الجعد قال سمعت السائب بن يزيد ( ماشوم صحابي ده ) يقول ذهبت بي خالتي الى النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقالت يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان ابن اختي وجع ( ليکل داسې شوې او د شيخ صاحب رَحِمَهُ اللهُ د خولې نه داده : وقع ) . دا روايت هم شته .

فمسح رأسي ودعا لي بالبركة . دعا د برکت يې راته وکړه .

ثم توضأ . بيا يې اودس وکړو .

فشربت من وضوئه . د هغه د اودسه اوبه مې وڅکلي .

نو دغه وخت کې تبرک په وضوء د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې معمول عام د صحابوو وو چا ته به چې ملاو شوې صرفه به يې نه کوله .

دارنګې بخاري جلد ۲ صفحه ۸۷۱ اول جلد صفحه ۵۴ کې هم مذکور ده هغه د بلال صاحب روايت دي :

أ رأيت بلالاً أخذ وضوء رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ بقيه اوبه د اودسه بلال صاحب را واخيستې .

ورأيت الناس يبتدرون ذالك الوضوء . خلک يو بل نه مخکې کيږي دې اوبو پسې ځان رسوي .

فمن أصاب منه شيئاً تمسح به . په ځان يې راکاږي .

ومن لم يصب منه شيئاً . چا ته چې دا اوبه ونه رسيږي .

اخذ من بلل يد صاحبه . د ملګري د لاس لوندوالي نه لوندوالي را واخلي په ځان يې

رمزي ځکه اوبه لږې دي او خلک ډیر دي .

نو چې چا ته ورسیدې ځان پورې به یې مړلې او که چا ته به ونه رسیدې د بل ملګري لاس سره به یې لاس تیږ کړ د هغه لاس نه به یې لوند والې واخیست ځان پورې به یې مږه .

دارنګې بخاري جلد ۲ صفحه ۸۴۲ ، ابوبرده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي :

قال لي عبدالله بن السلام . ماته عبد الله بن سلام وویل :

ألا أسقيك في قدح شرب النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فيه .

اوبه وڅکم دربانديې په هغه پیاله کې چې کومه کې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اوبه څکلي دي ګوره دوي دا فخر ګڼي زما کور کې پیاله ده هغه کې نبي پاک صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوبه څکلي زه نن تا ته هغه پیاله کې اوبه درکومه ځکه هغوي به دې ته خوشحالیدل چې دا هغه پیاله ده کومه باندې چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ شونډې مبارکې لږیدلې دي .

دارنګې بخاري جلد ۲ صفحه ۸۴۲ باندې لیکلي ، سهل ابن سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایي روایت دده دي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل سهل ته :

اسقنا يا سهل . مونږ ته اوبه راوړه ای سهله !

فخرجت بهذا القدح . پیاله ورسره ده نو وایي :

فخرجت لهم بهذا القدح . دا پیاله مې ورته راویسته .

فأسقيتهم فيه . دغه پیاله کې مې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته اوبه ورکړې .

فأخرج لنا سهل .

داخرج فاعل چې ده ابو حازم اخذ هذا الحديث ابو حازم وایي راویسته مونږ ته سهل

ذلك القدح .

هغه پیالې کومه کې چې یې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته اوبه ورکړې وې مونږ ته یې راوویسته .

فشربنا منه . مونږ هم د هغې نه اوبه وڅکلې .

ثم استوهبه عمر بن عبد العزيز بعد ذلك فوهبه له .

عمر بن عبد العزیز ترې نه طلب کړه چې ما ته یې راکړه نو هغه ته یې ورکړه بادشاه د

نت ده هغه ورته سوال کوي چې دا ماته راکړه چې دې کې نبي پاک ﷺ اوبه څکلي
ي.

دا رنګې مسلم جلد ٢ صفحه ١٦٢ باندې ليکلي دي، حضرت انس رضي الله عنه سره يوه
ياله ده فخر کوي:

لقد سقيت رسول الله ﷺ في هذا القدح أكثر من كذا وكذا.

نبي عليه السلام ته مې په دې پياله کې ورکړي زيات له دومره دومره نه يعنې ډيرې زياتې
اوبه ما نبي پاک ﷺ ته په دې پياله کې ورکړي.

قال ابن سيرين رحمه الله انه كان في حلق من حديد. دې کې د اوسپنې يوه حلقه وه.

حضرت انس رضي الله عنه اراده لري:

ان يجعل مكانها حلقة من ذهب او فضة. چې د سروزيا سپينو زرو کړي په کې جوړه کړي
په ځای ددې.

ابو طلحه رضي الله عنه ورته فرمايي:

لاتغيرن شيئاً صنعه رسول الله ﷺ فتركه. تغير مه ورکوه.

دا روايت بخاري هم ذکر کړي: باب الاشربة کې دويم جلد صفحه ٨٤٢ باندې.
قسطلاني شارح د بخاري نقل کوي د مختصر البخاري او قرطبي نه حواله کوي وايي:
او فتح الباري کې ذکر دی صفحه ١٢٣ جلد ١٦:

وذكر القرطبي في مختصر البخاري أنه رأى في بعض النسخ القديمة من صحيح البأري.

وايي په نسخو قديمو د امام بخاري دلته دا الفاظ موجود وه.

قال أبوعبدالله البخاري رأيت هذا القدح بالبصرة. دا پياله مې بصره کې وليده.

وشربت فيه. ما په کې اوبه وڅکلې.

وكان اشترى من ميراث نضر بن انس بثمان مائة الف.

له دغه شخص نه ما تپوس وکړو دا دې په څو اخيستې ده وايي دا د نضر ابن انس چې
اولاد حضرت انس رضي الله عنه ده د هغوي نه ما په اته لکه درهمه اخيستې.

کومه پیالي چې حضرت انس رضي الله عنه د بخاري په روایت وایي چې ما نبي علیه السلام په کراتو اوبه ورکړې په کې.

دارنګې مسلم شریف جلد ۲ صفحه ۱۷۸ باندې لیکلي : داد خندق واقعه ده طویل روایت ده د جابر رضي الله عنه فرمایي یو شخص نبي علیه السلام ته راغې خیته پورې یې کانړي تړلي وه د لوږې له وجهې نه ، نبي علیه السلام ته یې وویل زه وږي یم دې وخت کې نبي علیه السلام تکیه کړې وه راپاڅیده د خیټې نه یې لمنه اوچته کړه دوه کانړي ده تړلي وه.

حضرت جابر رضي الله عنه دا صحنه ولیده وایي په منډه کور ته راغلم بي بي ته مې وویل څه شته که نه یو وړوکي چیلي وه تقریباً دوه کلیلو وربشې وي ما وویل دا زر اوړه کړه په میچنې چیلې مې حلال کړه ما ویل دا باندې کړه پټ نبي علیه السلام ته وایم بس د یو څو نفرو به بس شي.

زر کسان لګیا دي په خندق کې کار کوي وایي چې راغلم نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ته ما ورته وویل چې روټي مې کړي مونږ سره لاړ شه هغه وویل یوازې ما بوځې که دا ټول خلق؟

زه د حیاء نه غلې شوم چې څه دوي به خپله سوچ وکړي چې د جابر صاحب غریبي او دومره خلک ، نو نبي علیه السلام اعلان کوي بلال صاحب ته وایي آواز وکړه د خندق خلکو ته چې جابر صاحب دوډې کړې ده.

خلک را راوان شول وایي زه ډیر زیات خفه شوم وایي چې کله د کور نه راتلم ما ته بي بي وویل :

**لاتفضحني برسول الله صلی الله علیه وسلم ومن معه.** لاړ شه پټ ګورې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ووایه چې کور کې اوړه کم دي ما ګورې ونه شرموې پټ خبره وکړه ، عام اعلان مه کوه . نو زه راغلم دا خبره مې پټه وکړه :

**یارسول الله! انا قد ذبحنا بهیمة لنا وطحنت صاعاً من شعیر کان عندنا فتعال في نفر معك فصاح رسول الله صلی الله علیه وسلم وقال یا أهل الخندق ان جابرا رضي الله عنه قد صنع لکم سورا فحي هلا بکم**

جابر صاحب وایي زه د حیاء نه په منډه راغلم بي بي ته مې وویل ټول راپسې را روان دي. وایي ماته مې بي بي وویل چې تا ورته وویل چې ټول راشي او که هغه ځان نه اعلان

وکړو ، ما ورته وویل چې نه ما نه دي ویلي وایي مه خفه کیږه دا میلمانه د هغه دي ستا نه دي هغه یې عذرولې شي .

جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي چې کله ترې راتلم ما ته نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آواز وکړو :

لا تنزلن برمتکم ولا تخبزن عجینتکم حتی أجيء .

زما راتللو نه مخکې کټوي کوزه نه کړي او هغه اوړه چې اغږلي مو دي پاخه یې نه کړي .

حتی اجيء . تر دې چې زه راشم .

دې وایي :

فجئت وجاء رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یقدم الناس .

زه راغلم او رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم راغې مخکې زه له خلکو بي بي ته مې وویل نور خلک را روان دي .

فقالت . ما ته بي بي وویل : بك بك . داسې شي داسې شي دا دې څه چل وکړو .

جابر صاحب ورته وویل :

قد فعلت الذي قلت لي . تا چې څه ویلې وو ما هغه کار وکړ ما پټ ورته ویلي وو .

فاخرجت له عجینتنا فبصق فیها وبارك .

کور نه مې هغه اوړه ورته راوویستل نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته لاړې یې په کې واچولې او د برکت دعاء یې وکړه .

ثم عمد الی برمتنا فبصق فیها وبارك ثم قال ادعی خابزة فلتخبز معك .

بیا یې ما ته وویل د ګاونډ نورې ډوډۍ پخوونکي راوغواړه چې، تاسره ډوډۍ پخه کړي .

واقدحي من برمتکم ولا تنزلوها . او دا کټوي راکوزوي مه بلکې د قدح په واسطه یې را اچوي .

وهم الف . او دوي زر کسان وو .

فاقسم بالله لاكلوا . قسم په الله ئې ولو وخوړه .

حتی ترکوه . تر دې چې پرې يې خوده .

وانحرفوا . دوي لاړل .

وان برمتنا لتغط کما هي . زمونږ کټوي خوټيده همغه شان چې وه :

وان عجينتنا او کما قال الضحاك عجينتنا لتخبز کما هو .

او بې بيانې همغه شان په تناره دوډي پخوي له هغه اوړو نه .

نو دا ښکاره برکت ده کوم برکت چې په معنی د زيادت سره وه .

دارنګې الشفاء بتعريف حقوق المصطفى د قاضي عياض کې په جلد ۱ صفحه ۲۱۸ کې ليکلي : قاضي ابو علي د خپل شيخ ابي القاسم بن مامون نه روايت کوي :

قال كانت عندنا قصعة من قصاع النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

د رحمت عالم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کاسو نه يوه کاسه مونږ سره وه .

فكنا نجعل فيها الماء للمرضى فيستشفون بها .

مونږ به هغې کې اوبه واچولې لپاره د مريضانو نو د هغې له برکته به شفاء ورته ميلاويده په سبب د دغې اوبو او دغې کاسې سره .

دارنګې مسلم شريف جلد ۱ صفحه ۲۳۳ حواله حديث د عتبان بن مالک نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د ضعف نظر شکايت کوي ، زما قائد نشته راتلې نشم کور کې مونځ کوم خو د مانځه ځای مې معلوم نه دي کاشکې ته يو ځل مونږ کره راغلې واي دوه رکعته مونځ مو کړې وای د برکت لپاره کوم ځای چې تاسو مونځ کړی وای ما به هغه ځای خپله مصلی مقرر کړې وای .

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وعده ورسره کوي وايي در به شم حضرت صديق اکبر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ځان سره ملګري کوي او دواړه روان شول :

ان عتبان بن مالك وهو من اصحاب النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ممن شهد بدرا من الانصار انه اتى رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقال يا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اني قد انكرت بصري وانا اصلي لقومي واذا كانت الامطار سال الوادي الذي بيني وبينهم ولم استطع ان آتي مسجدهم فأصلي لهم وددت

إنك يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تأتي فتصلي في مصلى فأتخذه مصلى.

قال فقال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سأفعل ان شاء الله قال عتبان فغدا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وأبو بكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حين ارتفع النهار فاستأذن رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فأذنت له فلم يجلس حتى دخل البيت ثم قال اين تحب ان اصلي من بيتك؟ قال فأشرت الى ناحية من البيت فقام رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فكبر فقمنا وراءه فصلى ركعتين ثم سلم.

ددې نه پته لږيږي چې کوم ځای صلحاء مونځ وکړي هغه ځای له برکت نه ډک وي.

امام نووي رَحِمَهُ اللهُ منهاج شرح کې ليکي:

منها التبرك بالصالحين وآثارهم والصلاة في المواضع التي يصلو بها وطلب التبرك منهم.

ثابت شو تبرک په اثر د صالحينو د هغوي او طلب د تبرک له هغوي نه.

دارنګې بخاري شريف جلد ۲ صفحه ۸۹۲ روايت د سهل ابن سعد ده دا حديث بخاري جلد ۱ صفحه ۱۷۰ کې هم ذکر ده: يو بي بي راغله نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته نوي جوړه يې راوړه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته هغه جوړه ډيره په مينه استعمال کړه يو سړي راغې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته عرض کوي چې دا جوړه ما ته راکړه رحمت عالم جوړه هغه ته ورکړه ځکه هغه انکار د چا نه، نه کوه:

فقالت يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أكسوك هذه فأخذها النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ محتاجا اليها فلبسها فرأها عليه رجل من الصحابة فقال يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما احسن هذه فاكسنيها فقال نعم فلما قام النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لامه اصحابه قالوا ما احسنت حين رأيت النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخذها محتاجا اليها ثم سألته إياها وقد عرفت أنه لا يسأل شيئاً فيمنعه فقال رجوت بركتها حين لبسها النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لعلي أكفن فيها.

هغه شخص دا جوړه واخيسته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ کور کې بدله کړه او دغه شخص ته يې ورکړه خلکو پرې اعتراض وکړو شارحين وايي چې دا شخص عبد الرحمن بن عوف ده يا سعد ابن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي نو:

طلب عبد الرحمن بن عوف يا سعد بن ابي وقاص عن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرداء السوداء

المريخ فطعنوه على ذلك .نو صحابو پرې طعن وويل او دا يې بده وګڼله چې هغه څومره په مينه قبوله کړه دغو دواړو نه يو جواب ورکوي :

فقال رجوت بركتها حين لبسها النبي ﷺ .

ما ديکي اميد د برکت کوه په هغه وخت چې نبي عليه السلام واغوسته .

لعلي اكفن فيها . بنايي چې زه دې کې دفن شمه .

دارنګې بخاري جلد ۲ صفحه ۷۵۰ باندې ليکلي ، بي بي عائشې رضي الله عنها دغه حديث روايت کړي نبي عليه السلام بيمار شو عادت يې داوه :

يقرأ على نفسه بالمعوذات وينفث فلما اشتد وجعه . درد يې سخت شو .

كنت أقرء عليه وامسح بيده رجاء بركتها .ما به دغه سورتونه لوستل د نبي عليه السلام په لاس به مې چوپ کول لاس د نبي عليه السلام به مې د هغه په جود را کشوه ځکه .

رجاء بركتها . اميد مې د برکت وه .

دارنګې بخاري جلد ۱ صفحه ۴۳۸ کې باب لړوي :

باب ما ذكر من درع النبي ﷺ وعصاه وسيفه وقدحه وخاتمه وما استعمل الخلفاء بعده من ذلك مما لم يذكر قسمته ومن شعره ونعله وانيته مما يتبرك اصحابه وغيرهم بعد وفاته .

دلته نسخې دوه دي : بعضې نسخو کې :مما شرك به اشترك به أصحابه .

بعضو نسخو کې راځي : مما تبرك به اصحابه وغيرهم بعد وفاته .

نو دې باب کې بيا هغه ټول روايات ذکر کوي نو امام بخاري رحمه الله تبرک بآثار الصالحين په کلکه قائل ده ځکه دې کې ترجمه د باب ولړوله .

دارنګې شفاء اول جلد صفحه ۲۱۸ د رحمت عالم چې کومه همسا وه د خلفاء په سلسله حضرت عثمان رضي الله عنه ته رسيدلې وه .

وأخذ جهجاه الغفاري القضيب همسا لرګي .

من يد عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ليكسره على ركبتيه. چې مات يې كړي په زنګنونو باندې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ همسا يې راواخيسته د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له لاس نه زنګون ته يې ونيوله چې ماته يې كړي.

فصاح الناس به. خلكو پرې چغې كړې چې داد نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ همسا ده.

فأخذته فيها الاكلة. په دغه زنګون باندې خوړونكي مرض ولږيده.

فقطعها ومات. دا زنګون يې ورته پرې كړ او مړ شو ځكه بې آدبي د اثر د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې همسا وه كړې وه.

ومات قبل الحول. د كال نه مخكې مړ شو.

تفسير صاوي جلد ۱ صفحه ۱۰۳ ليكي:

فكان كل من بال عنده ابتلي بالبواسير.

دغه تابوت چې په كې آثار د انبياو وه عمالقه وو په ډيران كې واچوه بول به يې ورته كول چا چې بول دغه صندق ته كړې وي په مرض د سلسل بول اخته شو ځكه بې ادبي د آثارد انبياء يې كړې وه.

دارنګې الاصابة في تمييز الصحابة جلد ۱ صفحه ۴۰۵:

روي عن سعيد ابن المسيب ان ابا ايوب اخذ من لحية رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شيئاً.

زلفه يې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ږيرې مباركې نه اخيستې وه.

فقال له. ورته وويل رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

لا يصيبك السوء يا ابا ايوب. تا ته به ونه ورسيږي هيڅ يوه بدي اى ابا ايوبه!

دارنګې جامع الاصول في آحاديث الرسول جلد ۱۲ صفحه ۸۵۶:

وكان عند معاوية ازار رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورداءه وقميصه وشيء من شعره واظفاره.

معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دغه مذكوره شيان ځان سره جمع كړې وو كله چې وفات كيږي وصيت كوي.

فقال كفنوني في قميصه. كفن د قميص د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه راكړي.

وأدرجوني في ردائه .د ننه مې كړي د نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ په څادر كې چې لفافه ورته وايي.

وازروني بازاره. او لنګ راواچوي د لنګ د هغه نه.

وحشوا منخري وشدقي و مواضع السجود مني بشعره و اظفاره.

وشيندي زما په منخر او ژامو او په ځايونو د سجدو باندې د عطرو پر ځاى شعره أظفاره زلفې مباركې د نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ او نوكونه مبارك د هغه.

وخلو بيني وبين ارحم الراحمين .بيا مې پرېږدي زما او د ارحم الراحمين مينځ كې كار مه لري، يعنې تاسو مې د نبي پاک صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لباس كې پټ كړي نور مې هغه ته وسپاري.

دا وه د صحابوو د تبرک عقيده چې د عذاب نه نجات د نبي پاک صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لباس كې ګوري.

دا واقعه مختصر تاريخ دمشق هم ذكر كړي جلد ٦ صفحه ۳۲۲، تنقيح الفهوم لاهل اثر ذكر كړي جلد ۱ صفحه ۲۱۲، الاكمال في اسماء الرجال ذكر كړي صفحه ٦۲۲، دارنګې شفاء جلد ۱ صفحه ۲۲۰.

ووضع يده على رأس حنظلة بن حذيم و برك عليه:

د حنظله بن حذيم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په سر نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ لاس ايښي وه او دعا د بركت يې ورته كړې وه.

فكان حنظلة يؤتي بالرجل قد ورم وجهه .يو سړي به ورته راوستې شو چې مخ به يې خوږېده.

والشاة قد ورم ضرعها. ګډه به ورته راوستې شوه چې د هغې غولانځه كې به بيماري وه.

فيوضع على موضع كف النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فيذهب الورم .كې به خودې شو په ځاى د كف د نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ نو لاړ به ترې نه مرض مطلب د چا به چې كوم ځاى درد كوه نو دده په سر باندې نبي پاک صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاس د بركت راكش كړي وه نو هغه درد والا ځاى به يې دده په سر سره ولږوه الله پاک به شفا وركړه ځكه په سر يې لاس د بركت د نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ راكش شوې وه.

همدغسې د کومې ګډې به چې غولانځه کې څه بیماري وه حنظله رضي الله عنه به سر ورتېر کړو او د هغه ګډې غولانځې سره به يې ولږوه الله پاک به شفاء ورکړه.

دارنګې الشفاء بتعريف حقوق المصطفى جلد ۲ صفحه ۷۰ باندې ليکلي، د ابن عمر رضي الله عنه نه روايت ده:

**واضعاً يده على مقعد النبي صلى الله عليه وسلم من المنبر ثم وضعها على وجهه.**

عبدالله ابن عمر رضي الله عنه راغې د نبي پاک صلى الله عليه وسلم په منبر يې لاس کيخود بيا يې په مخ کيښود.

نو اوس هم هغلته راځي خلک کوم چې عقيدتمند دي محراب منبر د نبي پاک صلى الله عليه وسلم د شرک آوازونه پرې کيږي خو خلک زيات وي منع کولې يې نه شي.

نو داد عبدالله ابن عمر رضي الله عنه نه ثابت دي چې هغه مبارک لاس په منبر کش کړې وه بيا يې په مخ ايخي وه.

**وروي ابن عمر واضعا يده على مقعد النبي صلى الله عليه وسلم من المنبر ثم وضعها على وجهه.**

**ولهذا كان مالك رحمه الله لا يركب بالمدينة دآبة وكان يقول أستحي من الله أن أطأ تربة فيها رسول الله صلى الله عليه وسلم بحافر دآبة.**

دارنګې وفاء الوفاء باخبار المصطفى جلد ۲ صفحه ۴۴۳ ليکلي د امام احمد رحمه الله فتوى ذکر کوي: عبدالله بن امام احمد رحمه الله روايت کوي:

**سألت عن أبي** . د پلار نه مې تپوس وکړو:

**عن الرجل** . د يو سړي باره کې.

**يمس منبر رسول الله صلى الله عليه وسلم** . چې د نبي عليه السلام منبر مسحه کړي.

**ويتبرك به** . او تبرک پرې حاصل کړي.

**ويمسه ويقبله** . ښکلوي يې او مسحه کوي يې.

**ويفعل بالقبر مثل ذلك** . او راشي قبر سره هم دغه شان کوي ښکلوي يې لاس پرې راکاږي.

رجاء ثواب الله تعالی قال لابأس به . وايي ما ته خپل پلار امام احمد صاحب وويل څه باک نه لري .

دا واقعه عمدة القاري د عيني جلد ۴ صفحه ۶۰۷ کې هم ذکر کړي فتوی د امام احمد صاحب په کې مذکوره ده .

دارنګې العلل ومعرفة الرجال جلد ۲ صفحه ۴۹۲ کې هم مذکوره ده.

دارنګې د آحادیث باب .

دارنګې عبد الله ابن الزبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ؛

شرب دم النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . عبد الله ابن زبیر ويني د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ څکلي وي .

دا حدیث مسند البزار جلد ۶ صفحه ۱۶۹ کې ذکر کړي هُنيد بن قاسم د عامر بن عبد الله بن زبیر نه روایت کوي هغه يې د خپل پلار نه :

قال احتجم رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فأعطاني الدم قال إذهب فغيبه فذهبت فشربته ثم أتيت النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقال لي ما صنعت به ؟ قلت غيبته قال لعلك شربته؟قلت شربته .

دا روایت ساکت ده له دې نه چې نبي پاک صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څه په کې وويل بس دومره دي چې ما ورته وويل څکلې مې ده .

الاحاد المثاني لابن ابي عاصم جلد ۲ صفحه ۱۲۱ په هغې کې دا راځي :

ولم شربت الدم . وينه دې ولې وڅکلې .

ويل للناس منك وويل لك من الناس .

شدت ده د خلکو لره له تانه او شدت ده ستا لره له خلکو يعنې ته خلک مه ګرفتاروه او خلک دې تا نه ځان ساتي ځکه وجود ته دې طاقت ملاو شو ځکه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وينه وجود او ذات دا يو قوت لري :

حديث کې راځي نبي پاک صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې د څلویښتو جنتیانو طاقت وه او په يو جنتي کې د سلو ځوانانو د دنيا طاقت وي نو ځکه نبي پاک صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته فرمايي :

ويل للناس منك وويل لك من الناس .

دا واقعه مستدرک هم ذکر کړي جلد ۳ صفحه ۶۳۸ کې .

معرفة الصحابة د ابي نعيم ذكر کړي جلد ۱۱ صفحه ۴۶۸ روايت د ابي نعيم په حليه کې او د ابن عساکر په تاريخ کې او د ابن غطريف په جزء کې د زيادت الفاظ ښايي نبي پاک صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته ويلي وي چې ولې دې وڅکلې.

قال اى ابن زبير احببت ان يكون دم رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في جوفي.

دا مې ډيره خوښه وه چې ستا وينه زما وجود ته راشي.

فقال بيده على رأس ابن الزبير. په سر د عبد الله ابن زبير لاس راښکه.

وقال ويل لك من الناس وويل للناس منك لا تمسك النار إلا قسم اليمين.

او ربه دې مسحه نه کړي مګر د هغه قسم يمين د پوره کولو لپاره چې الله پاک کړي.

﴿وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا﴾. يو هم نشته مګر داخليږي به.

د همدغه قسم د پوره کيدو لپاره به د سترګو رپ او ر ته داخل شي خو نور به دې مسحه نه کړي.

حواله د ابن غطريف اول جلد صفحه ۶۶ ده حواله د حلية الاولياء جلد ۱ صفحه ۳۳۰ ده، حواله د تاريخ دمشق لابن عساکر جلد ۲۸ صفحه ۱۶۲ ده.

دې ټولو کتابونو دغه د عبد الله ابن زبير دا حديث ذکر کړې ده خو الفاظ لږ جدا دي.

سنن دارقطني هم ذکر کړي جلد ۱ صفحه ۲۲۸، مطالب العالية د ابن حجر صاحب هم دا واقعه ذکر کړي په جلد ۱۱ صفحه ۸۵ باندې، الاصابة في معرفة الصحابة جلد ۲ صفحه ۱۲۷، د علامه قرطبي تفسير جلد ۲ صفحه ۹۳ ذکر کړي.

ماوردي په اعلام النبوة کې ذکر کړي جلد ۱ صفحه ۱۲۱، علامه سيوطي رَحِمَهُ اللهُ په جامع الاحاديث جلد ۳۵ صفحه ۳۵۴ کې ذکر کړي.

مناوي رَحِمَهُ اللهُ فيض القدير جلد ۵ صفحه ۲۵۲، سبل الهدى والرشاد في سيرة خير العباد کې علامه شامي رَحِمَهُ اللهُ جلد ۱۵ صفحه ۴۰، سيوطي رَحِمَهُ اللهُ خصائص الکبرى جلد ۱ صفحه ۱۱۸، ابن المنظور په مختصر تاريخ دمشق جلد ۱ صفحه ۱۶۸۴، سيوطي رَحِمَهُ اللهُ تاريخ الخلفاء جلد ۱ صفحه ۸۷، امام ذهبي تاريخ اسلام جلد ۲ صفحه ۱۵۷ کې ذکر کړي، قاضي عياض په الشفاء جلد ۱ صفحه ۲۴۹ کې.

دي تولو دا حديث د عبدالله بن زبير رضی الله چې د نبي عليه السلام وينې يې څکلې وي
تولو ذکر کړې دي .

شرب دم النبي صلی الله علیه وسلم .

دويم : المعجم الکبير للطبراني جلد ۷ صفحه ۸۱ کې ليکي :

عن برية بن عمر بن سفينة مولى رسول الله صلی الله علیه وسلم عن ابيه عن جده قال احتجم فقال خذ هذا الدم فادفنه من الدواب والطير والناس فتغيبت فشربته ثم ذكرت ذلك له فضحك واللفظ لأحمد بن صالح .

سفينه چې وه څکلې وي وينې د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا روايت ذکر کړي په بيهقي
سنن الکبير جلد ۷ صفحه ۶۷ کې .

دارنګې بيهقي شعب الايمان جلد ۱۴ سفحه ۳ کې أمالي د محلي جلد ۲ صفحه ۳۰
تاريخ کبير د امام بخاري په آحاديثو مرفوعو کې ذکر کړي جلد ۲ صفحه ۲۰۴ کې .

مطالب العاليه د ابن حجر جلد ۱۱ صفحه ۸۶ کې ذکر کړي ، تلخيص الخبير جلد ۱
صفحه ۳۰ مجمع الزوائد جلد ۸ صفحه ۲۱۹ دې تولو دا حديث ذکر کړې .

دريم روايت : دارنګې معجم الاوسط د طبراني جلد ۱۹ صفحه ۴۳۱ باندې ليکي :

حدثنا مسعدة بن سعد ثنا ابراهيم بن المنذر ثنا عباس بن ابي شملة عن موسى بن يعقوب عن الاسقع عن ربيح بن عبدالرحمن بن ابي سعيد عن ابيه عن جده ان اباه مالك بن سنان لما اصيب رسول الله صلی الله علیه وسلم في وجهه يوم احد مص دم رسول الله صلی الله علیه وسلم وازدرده فقيل له اتشرب الدم قال نعم اشرب دم رسول الله صلی الله علیه وسلم فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم خالط دمي بدمه لا تمسه النار . د ابو سعيد رضی الله عنه والد ګرامي سنان ابن مالک د
نبي عليه السلام وينې يې څکلې وي کله چې نبي عليه السلام احد کې زخمي شو .

وازدرده څېلې وي ، چا ورته وويل وينې څکې ؟

قال : نعم اشرب دم رسول الله صلی الله علیه وسلم . د هر چا وينې نه څکم بلکې د رسول الله
صلی الله علیه وسلم وينې څکم .



Scanned by CamScanner

فقال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل :

خالط دمي بدمه لا تمسه النار. دده له وينې سره زما وينه خلط شوه او ر د جهنم بديې مسحه نه کړي.

دا رنګې معجم الکبير د طبراني جلد ۲۴ صفحه ۲۰۵ - ۵۲۷ :

حدثنا عبدالله بن أحمد بن حنبل ثنا يحيى بن معين ثنا حجاج بن محمد عن ابن جريج عن حكيمة بنت اميمة عن امها اميمة قالت كان للنبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قدح من عيدان يبول فيه ويضعه تحت سريره فقام فطلب فلم يجده فسأل فقال اين القدح؟ قالوا شربته برة خادم ام سلمة التي قدمت معها من ارض الحبشة فقال النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لقد احتظرت من النار بحظار.

دا بي بي له جهنم نه په حجاباتو کې شوه کومې چې بول د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څکلې وي.

دا حديث صحابت المثاني د ابي عاصم ذکر کړي جلد ۹ صفحه ۲۳۲ کې دا حديث ذکر کړي مجمع الزوائد جلد ۸ صفحه ۲۲۰، امام بيهقي په سنن جلد ۲ صفحه ۱۲۲ کې، معجم دابن منحرى جلد ۱ صفحه ۱۳۰، استيعاب جلد ۲ صفحه ۷۹، الاصابة في معرفة الصحابة جلد ۳ صفحه ۴۴۹ تاريخ دمشق ذکر کړي جلد ۶۹ صفحه ۵۱، تهذيب الکمال د مذي جلد ۳۵ صفحه ۱۵۶، سير اعلام النبلاء جلد ۹ صفحه ۴۵۰. دا ټولو دا حديث رانقل کړي دي.

دا رنګې پنځم روايت د دې متعلق :

المعجم الکبير للطبراني جلد ۲۵ صفحه ۸۹ باندې ليکلي :

حدثنا الحسين بن اسحاق السترى ثنا عثمان بن ابي شيبة ثنا شبابة بن سوار حدثني أبو مالك النخعي عن الاسود بن قيس عن نبيح العنزي عن ام ايمن قالت قام رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من الليل الى فخارة في جانب البيت فبال فيها فقمت من الليل وانا عطشانة فشربت ما فيها وانا لا اشعر.

فلما اصبح النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال يا ام ايمن قومي فاهريقي ما في تلك الفخارة قلت قد والله

شربت ما فيها قالت فضحك النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حتى بدت نواجذه ثم قال اما إنك لا تتجعين بطنك ابدا الحديث .

دا ام ايمن رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهَا چې وه هر وخت به يې شكايت كوه د خيټې له درد نه د خيټې درد يې لرلو يو ځل نبي پاک صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شپې بول په يو لوښي کې وکړل په يو طرف د کوټه کې كيښودي ام ايمن رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ د شپې تږي شوه او دا بول يې وڅکل چې كله صباء شو نبي پاک صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ام ايمن رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهَا ته وويل چې دا د کډري لوښي کې څه دي دا بهر واړوه بيا بيي ورته وويل چې هغه خو ما وڅکلي .

نو نبي پاک صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خندا شو تر دې چې نواجذ غابښونه يې ښکاره شول.

ثم قال اما إنك لاتتجعين بطنك أبدا .

ته به هيڅ کله د خيټې له درد نه شكايت ونه کړي .

داد صحابوو عقيده وه .

دا حديث مستدرک ذکر کړي جلد ١٦ صفحه ٢٠٢ ، بيروتي چاپ ، دلائل النبوة د ابونعيم ذکر کړي جلد ١ صفحه ٤٢٧ حليه د ابي نعيم ذکر کړي جلد ٢ صفحه ٦٧ ، مجمع الزوائد جلد ٨ صفحه ٢٢٠.

دارنګې تذکره د امام قرطبي صفحه ١٠٤ کې باب لړوي :

باب يختار للميت قوم صالحون يكون معهم .

په کار داوي چې مړې دې دفن شي په مقبره د صالحينو کې .

دې باب کې بيا دغه احاديث ذکر کوي ، حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ فرمايي :

امرنا رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أن ندفن موتانا وسط قوم من الصالحين .

مونږ ته رحمت عالم امر کړي چې دفن کوي مړي په مقبرو د صالحينو کې .

فان الموتى يتأذون بجار السوء .

په تحقيق سره بد ګاونډي باندې مړو ته تکليف رسيږي .

كما يتأذى به الاحياء . لكه څنګه چې ژوندي ترې په تکليف کيږي .

دارنګې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه روایت کوي وایي :

**قال إذا مات لاحدکم المیت فحسنوا کفنه .**

چې کله مړې وشي کفن یې بنائسته کړي بنه کفن ورته واخلي .

نن صبا پاکستان افغانستان کې عام معمول دادی چې مړې وشي نو سان ورته اخلي دا په حدیث کې نه دي راغلې بلکې فقهاء لیکي چې کومه جامه چې دې په ژوند کې استعمالوي هغه دې ورته واخستل شي .

په یو کتاب کې هم نشته چې سان کتان یو رخت ده تاسو هغه واخلي بلکې راغلې سپین واخلي نو دا خو په دا عامو جامو کې هم شته پخوا داسې وه چې یو کتان وه دویم سان وه دا دوه رختونه وه کتان کې دا مشکل وه چې بنه کېږه وه خو سوریې کم وه نو مړي په کې لفافه کیده نه، او د سان سور غټ وو خلکو به دا غوره کولو په مقابل د کتان کې .

نن صبا چې غټي غټي کېږي شته نو سان ته څه ضرورت ده حدیث کې راځي :

تاسې خپلو مړو ته بنکلي کفنونه ور واغوندې څکه دوي هغلته د یو بل سره ملاقاتونه کوي او فخر کوي په کفنونو نو اوس مونږ بنځو ته هم د سان نه کفن جوړوو او سان د نارینو ده .

نو تحسین د کفن په کار ده نارینو ته به د نارینو کېړه اخلي او زنانو ته به د زنانو کېړه اخلي خو سپینه .

**وعجلوا بانجاز وصیته وجنبوه جار السوء .** د بد ګاونډي نه یې لرې وساتي .

چا عرض وکړو :

**یا رسول الله صلی الله علیه وسلم ! هل ینفع الجار الصالح في الآخرة .**

ولې په قبر کې بنه ګاونډي نفعه رسوي .

**قال هل ینفع في الدنیا .** آیا نفع رسوي په دنیا کې بنه ګاونډي .

**قالوا نعم قال کذلك ینفع في الآخرة.**

د آخرت نه مقصد قبر ده نو چې بنه ګاونډي دنیا کې نفع رسوي نو آخرت کې یې هم رسوي .

دارنګې روايت د ابي هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پيش کوي :

قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اكفنوا موتاكم وسط قوم من الصالحين .

دفن کړي مړي په مينځ د صالحينو کې .

فان الميت يتأذى بجار السوء . بد ګاونډي باندې مړي په تکليف کيږي .

نو اوس دلته علامه قرطبي په دغه آحاديثو شرحه کوي :

قال علماءنا يستحب لك رحمك الله ان تقصد بميتك قبور الصالحين .

مستحب په تا داشوه الله دې په تا رحم وکړي خپل مړي په مقبره د صالحانو کې دفن کړه .

ومدافن أهل الخير . د اهل خير مدفن ته .

فتدفنه معهم . له هغوي سره يې دفن کړي .

وتسكن بجاورهم . د هغوي ګاونډ کې وواوسوه .

تبركاً بهم . له وجهې د تبرک نه هغوي باندې .

وتوسلاً إلى الله بقربهم . د هغوي په نزديکت باندې خداى تعالى ته وسيله ونيسه .

دارنګې عالمګيريه فتوى جلد ١ صفحه ١٦٦ ذکر کوي وايي :

ويستحب ان يدفنه بجوار الصالحين لحصول التبرك .

د صالحينو مقبرې سره خوا کې مړي دفن کول مستحب دي د حصول د تبرک لپاره .

**اوس !!!** دا خبره چې زمونږ اهلسنت په يو مزار باندې تمسح کوي تبرک حاصلوي دوي تعجبا مونږ ته مشرکين وايي . نو اوس به راشو صحابو رضوان الله تعالى عليهم اجمعين ته چې تمسح څوک کوي تعجب څوک کوي دوي څوک شول مونږ څوک شو .

البداية والنهاية جلد ۴ صفحه ۳۰۷ د بيروت چاپ د فتح مکې واقعه ذکر کوي :

كانت الصحابة يبتدرون الى وضوء النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ والمشركون يتعجبون من ذلك.

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ اودس وکړو هغه اوبه پاتې شوي رش جوړ شو صحابه يو بل نه مخکې کيږي هغه برکتي اوبو ته ځان رسوي او هغه اوبه په ځان مړي لړي لړي مشرکان ولاړ دي تعجب کوي تبرک په اثر د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ صحابه نيسي او مشرکان ترې تعجب کوي .

دارنګې البداية والنهاية جلد ۲ صفحه ۲۷۳ باندې ليکلي : د هغه برکاتو د نبي عليه السلام ذکر کوي : حليمه بي بي نبي اکرم صلى الله عليه وسلم ځان سره روان کړي دشته کې چې د حليمي بي بي اوښه ځري نو هلته ګياوې او د خلکو اوښان چې چيرته ځري د هغوي اوښانو ته کياه نه وي بيا به خلکو ددوي اوښانو سره اوښان ځرول .حليمه بي بي خپل خاوند ته وايي :

قد أخذت نسمه مباركة.

اى زما خاونده ډير عجيب مبارک ماشوم مې اوچت کړې ده عجيبه عجيبه حالات مې وليدل نو نبي عليه السلام تپه وخت د صغر کې د مبارک نسبت شوې دي .

دارنګې البداية والنهاية جلد ۲ صفحه ۴۰ دانيال عليه السلام يو قول ۳۰۰ کاله بل قول ۵۰۰ کاله څه د پاسه څوک چې د عيسى عليه السلام او د نبي عليه السلام مينځ کې د بل پيغمبر قائل دي هغه يې وروسته د عيسى عليه السلام نه ګڼي او څوک چې قائل نه دي هغه زمانه د دانيال عليه السلام مخکې ګڼي له زمانې د عيسى عليه السلام نه .

هغه څه د پاسه ۵۰۰ کاله مخکې وفات شو هغه مبارک چا دفن نه کړو په صندوق کې يې کيخودو څه د پاسه ۵۰۰ کاله دې بادشاهانو ځان سره ساتلې وه څه د پاره .

دغه ځای کې البداية والنهاية تاريخي واقعه را اخلي دې لپاره يې ساتلې وه چې کله به باران نه کيده دده تابوت به يې راوويسته او تخته د تابوت به يې اوچته کړه او دده مبارک تنه وجود به يې اسمان ته وخود باران به شروع شو دې لپاره يې ساتلې وه څه د پاسه ۵۰۰ کاله دا مسئله شروع وه .

رحمت عالم عمر فاروق صاحب ته ويلي وه که تاسو دغه ښار ته ورسيدې او چا زيري درکړ چې دانيال عليه السلام دغه دې تنه وجود يې دروخوده .

فبشره بالجنة . هغه څوک چې تاسو ته د دانيال عليه السلام زيري درکوي هغه ته تاسو زما لخوا زيرې د جنت ورکړي کله چې صحابه کرام هغلته لاړ ابو موسى اشعري رضي الله عنه لوي لوي صحابه په کې دي.دا تنه مبارکه دوي وليده چاورته زيري هم ورکړ چې دا ددانيال عليه السلام ده.

خط يې راوليږلو امير المؤمنين عمر فاروق رضي الله عنه ته چې مونږ هغه ځای ته رسيدلي يو دغسې مسئله ده مونږ دې سره څه وکړو ؟

عمر فاروق رضي الله عنه ورته خط ليږي چې چا تاسو ته زيري درکړې وي تاسو هغه ته زيري

د جنت ورکړي ما د رسول الله صَلَّىٰ اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه داسې اوریدلي وه باقي تنه وجود د دانیال عَلَیْهِ السَّلَامُ دفن کړي د شپې د خلکو نه پټه ځکه چې تاسې ترې راشي خلک به یې بیا را بهر کړي صحابو و همداسې وکړل او د شپې یې دفن کړ د خلکو نه پټ.

دارنګې البدایة والنهایة جلد ۳ صفحه ۳۰ دې کې د هغه بي بي واقعه ده چې کومه هجرة کې نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ د هغې خیمې باندې راغلې وه او دې سره وچه چیلي وه بیا نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ دم کړه او په هغه کې شوده پیدا شول، مشهوره واقعه ده.

بیا یو وخت داسې وو چې د غه بي بي چیرته دشته کې خیمه وهلې ده حضرت صدیق اکبر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دغه لار تیریږي ددې چې کوم وړوکي بچي دي هغه مورته په منډه راځي موریې هغه سړي راغې چې زمونږ خیمې ته راغلي وه مع المبارک سره د مبارک نه نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ نه د مبارک تعبیر کوي. موریې رابهر شوه د خیمې نه صدیق اکبر صاحب ته وایي اما کنت ته نه یې هغه سړي چې راغلې وې زمونږ کورته د مبارک سره صدیق صاحب ورته وویل چې یمه وایي هغه سړي څوک وه بیا ورته صدیق اکبر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قصه کوي بیا یې راولي او په نبي اکرم صَلَّىٰ اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ایمان راوړي.

نو د صحابو و په زمانه کې نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ ته لفظ د مبارک استعمال شوي ده نو مخلوق ته استعمال د مبارک نا روا نه دي.

الدین الخالص د امین الله بشاوري باندې لیکلي دا صفحه ۳۴۴ ازدیاد الایقان بحفظ شعب الایمان رساله لیکي:

**سئلني الاخ سمیع الله الحافظ عن عدد شعب الایمان کم هي و هل وردت جملتاً في حدیث وهل هناك الرساله حاویة لهذا الشعب فاجبته.**

ما ترې جواب ورکړي.

**فاجبته بهذه الرسالة الطیبة المبارکة.**

ما په دې خپله رساله مبارکه جواب ورکړي نو د بشاوري رساله مبارکه ده او که د محمد مصطفی صَلَّىٰ اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لارو ته دې مبارکې وویلې نو شرک ده نو که مبارک غیر الله ته شرک شي نو دا رساله خو مخلوق ده.

دارنګې فتوح الشام جلد ۱ صفحه ۸۱ باندې ليکي: ضرار بن ازور رضي الله عنه د حضرت خالد رضي الله عنه دست راست وو عبدالرحمن بن ابي بکر يې چپ لاس وه دا دواړه دده په هريوه حمله او جهاد کې به ورسره وو حضرت ضرار بن ازور به قميص نه اغوسته ده ته به لنډه غر ويل کيده.

دې به چې کوم جهاد کې لاړ نو قيصر روم يې ډير حيران کړې وه هغه به جاسوسان صف د مسلمانانو ته راوليږل چې وګوري هغه بې قميصه شته ورسره او که نه؟ که چا به وويل چې شته نو بيا به يې پهلوانان نه جنګول وايي ډارک جنګ وکوي د وجود نه کم وه خو چې ځومره مضبوط پهلوان به راغې خالد صاحب ته يې وويل چې اجازه زه مقابلې ته ورځم.

چا ورته وويل قميص ولې نه آغوندې وايي بيا کافر وايي چې لاندې يې زغره ده نو ده يوه کارنامه جنګ کې وکړه حضرت خالد صاحب ورته راتاويږي:

فلما انكشف الكرب. هر کله چې جنګ خلاص شو خالد صاحب نه خلک تاو شوې وه او دې يې مينځ کې ګير وه.

ضرار چا خبر کړ چې خالد بن وليد ګرفتار دې په مينځ د جنګ کې نو دې مبارک په اس پسې ورغې داسې جنګ يې وکړو چې دا ټوله محاصره د خالد صاحب يې ماته کړه.

خالد صاحب چې د ضرار صاحب دا مقابلې ته وکتل نو وې ويل:

افلح الله وجهك يا ابن الأزور فما زلت مباركاً في كل افعالك.

خداى تعالى دې فلاح درکړي اى ضرار بن ازوره چې کوم کار ته مخه کړي مبارک يې د برکت نه ډک يې نو نسبت د مبارک ضرار بن ازور رضي الله عنه ته وشو.

دارنګې فتوح الشام صفحه ۱۱۶ جلد اول:

ان خالدا ما يخذل أبدا ومعه ذؤابة المصطفى صلى الله عليه وسلم.

حضرت خالد رضي الله عنه کله هم جنګ کې شکست نه ده خوړلې وجه دا وه چې د ده سره ټوپي کې زلفې مبارکې د نبي عليه السلام وې هغه يې جمع کړې وې:

القلنسوة المباركة وقد نسيها فأخذتها واسرعت اليه كما ترى.

يوه ورځ ترې هيره شوه ما راواخسته ورووه مې رسوله.

دارنګې فتوح الشام جلد اول صفحه ۱۶۹، په دې کې هغه توسل د حضرت علي رضي الله عنه او عباس صاحب مذکور ده چې باب د توسل کې ذکر شوې دې د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم روضې سره دعا کول تبرک دې.

دارنګې فتوح الشام جلد ۱ صفحه ۱۷۱ د ابوسعید رضي الله عنه سعید ابن عامر هغه غار ته لاړل کوم چې حدیث کهف والرقیم کې راغې په غزواتو کې دې ځای ته ورسیدل مجاهدین عرض کوي:

یا سعید وما الرقیم؟ رقیم څه شي ده؟.

اما تعرفه فحدثهم بحدیث الرقیم قال سعید فعجبوا من ذلك ثم اقبلت بهم الى الغار فصلوا فیه.

دا ټول مجاهدین مې دې غار ته راوستل هلته یې دوه دوه رکعته لمونځ وکړو.

نو دا عمل د صحابو ده چې د اولیاو د مدفن سره اصحاب کهف دلته دفن وه او هغې په خوا کې دوي مونځ وکوه.

﴿قَالَ الَّذِينَ غَلَبُوا عَلَىٰ أَمْرِهِمْ لَنَتَّخِذَنَّ عَلَيْهِم مَّسْجِدًا﴾.

وویل هغو چې غالب وه په دین د دوي یعنې مؤمنان وه مونږ په دوي مسجد جوړوو نو بیا مسجد جوړ شو خلکو به د برکت لپاره هلته مونځ کوه.

دارنګې فتوح الشام صفحه ۲۱۰ جلد اول کې لیکلي دي: مخکې دده یعنې د خالد صاحب د ټوپي واقعه ذکر شوه چې ترې غورځیدلې وه.

دارنګې فتوح الشام صفحه ۹ جلد دویم یوه غزوه ده نجده کې یو ناڅاپه حمله وشوه:

ثم اسرع الى خیمته ولبس لامته وقلنسوته المبارکة ورکب جواده.

حضرت خالد رضي الله عنه په منډه خیمې ته دننه شو خپله جنګي ټوپي یې په سر کړه او قلنسوه مبارکه یې په سر کړه چې کومه کې زلفې وې.

دارنګې فتوح الشام جلد ۲ صفحه ۲۷ کې لیکلي دي: فتحه د طرابلس د شام دې کې اهل د طرابلس د شام شکریه ذکر کوي چې هغو وویل:

ونحن نسجد للصلبان ونعظم الصور. مونږ د څیپلیو او نورو شیانو تعظیمونه کول یا

دصورو او مونږ نصرانيان وو تر دې چې مونږ ته عربان راغلل :

فهدانا والحقنا بهم ببركة نبيهم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په برکت يې مونږ ته هدايت وکوه.

دارنګې فتوح الشام جلد دوهم صفحه ۳۲ کې فتحه د مصر ذکر کوي :

وملك المسلمون أقاصي البلاد ببركة نبينا محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

د عمر صاحب زمانه کې صحابه لرې لرې ښاريو باندې قابض شول دا ټول برکات د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وه.

دارنګې فتوح الشام جلد دويم صفحه ۶۳ کې : هغه بحر د مصر چې کوم راپورته کيږي او عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته خط ليکلي وه هغه واقعه نقل کوي نو وايي چې د مصر خلک اوچت شول د دغه تکليف نه.

ببركة عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وانقطعت عن أهل مصر تلك السنة السيئة ببركة عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

دارنګې چې کله بيت المقدس فتحه شو نو هلته يو کانړې ده په هغې کې نقش د يو قدم ښکاريږي خلک به راتلل دغه کانړې به يې ښکلوه دا قدم به يې هم ښکلوه مسلمانان مجاهدين راغلل دې عالم د عيسويانو نه تپوس وکوه چې دا خلک ولې دا کار کوي وايي دوي دا ګمان کوي چې داد عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ قدم ده ماته پته ده چې داد حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قدم ده چې کله معراج ته تللو دا هغه قدم ده مسلمانان چې کله پوي شول:

لما رأى المسلمون يعظمون الصخرة ويقبلون القدم.

مسلمانان رامات شول دا قدم يې ښکلوه نو عيسويان دې خپل عالم ته راغلل چې مسلمانان خو هم د عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ قدم ښکلوي.

هغه ورته وويل چې دا خو ستاسو ګمان دې چې داد عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ قدم ده ماته معلوم ده چې داد حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قدم ده نو صحابه مجاهدين هغه قدم ښکلوي چې کوم په کانړې کې موجود دي .بيت المقدس کې داشته معروفه دا وه چې داد حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ قدم دي خو حقيقت کې داد حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قدم وه که داد حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ قدم وې هم تقبيل يې روا ده.

دا جدا خبره ده چې د عیسویانو مخکې دومره تعظیم چې هغوي پرې خوشحالیږي مه کوه لیکن در حقیقت هم ذي برکت انسان دي .

د حضرت ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ قدم مقام ابراهیم چې ورته وایي امر کیږي :

﴿وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى﴾ .

نو دا ثابتوي دا خبره چې د یو ولي قدم کوم ځای سره ولږیږي او ناسته یې وشي د هغه ځای سره مونځ شرک نه دي بلکې دا روا دي ځکه امر مونږ ته کیږي .

دارنګې فتوح الشام جلد دویم صفحه ۱۸۲ امام واقدي سند سره ذکر کوي سعد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کوثاریا ته راغې نزل کوز شو :

في المكان الذي سجن فيه ابراهيم الخليل عَلَيْهِ السَّلَامُ . کوم ځای کې چې ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ نمرودیانو جیل ته اچولې وه نو جیل کې دده وخت تیر شوې وه .

چا ورته وویل ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ دلته جیل خوړلې نو دې د آس نه راکوز شو .

فصلى فيه . دوه رکعته مونځ یې هلته وکړو .

ځکه ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ دغه کوټه کې وخت تیر کړې وه .

وحمد الله وصلى على رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

دارنګې فتوح الشام جلد ۲ صفحه ۲۰۴، په فتحه د بهنسا کې د صحابه کرامو روایت ذکر کوي چې مونږ دغه علاقې ته لاړو .

فزرنا الجبانة في ساعة الاسحار ورأينا ما فيها من الانوار و بزيارة قبور السادة والاخيار نرجوا من الله ان يحط عنا الذنوب والاوزار فلما قضينا الزيارة ولاحت لنا تلك الاشارة اخبرنا عن تلك السادة الامجاد وما كان لهم من الصبر على الغزو والجهاد .

دا ښار چې مونږ ونیوه د سحر وخت کې مونږ ووتو روان شو او په دې ښار کې چې څومره زیارتونه وو هغه مو وکړه دې د پاره مو وکړ :

نرجو من الله ان يحط عنا الذنوب والاوزار .

چې مونږ نه ګناهونه پرې ورژیږي کله چې مونږ زیارتونه خلاص کړل وروسته بیا خلک

راغونه شول هغوي ته مې تقرير وكوه او د بهنسا د فتحې واقعه مې ورته ذكر كړه.

دارنګې تاريخ ابن هشام جلد ۲ صفحه ۱۱۲ د ابي ايوب انصاري واقعه ده:

نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مدينه منوره كې دده كور كې ديره وه روټي به يې ورته راوړه ابي ايوب تر هغې روټي نه خوړله ترڅو د نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پاتې شونې ونه خوري. يوه ورځ روټي واپس راغله هيڅ لاس په كې نه وو وهل شوې ابي ايوب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي:

**كنا نصنع له العشاء**. مونږ به د ماخوستن روټي تياروله.

**فاذا رد علينا فضله تيممت انا وام ابي يوب**.

چې كله به كاسه راغله واپسي د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه نو ما او زما بي بي ام ايوب لټول به موضع د لاس د نبي عَلَيْهِ السَّلَام.

**فأكلنا منه نبتغي بذلك البركة**. خوراک مو كوه او طلب د بركت به مو كوه.

دا چند حوالې د ابن هشام ذكر شوې.

دارنګې اعلام النبلاء جلد ۲۰ صفحه ۲۰۹ په شان د احمد بن علي بن جعفر كې ليكي وايي:

**هو عالم النسابور**. د نسابور جيد عالم وه.

**قبره يزار يتبرك به**. د قبرېې زيارت كولې شي خلک پرې تبرک حاصلوي.

دارنګې سير اعلام النبلاء جلد ۲۲ صفحه ۱۴۰، په شان د خوارزم شاه بادشاه كې ليكي:

**يتبرك باهل الدين**. ده به طلب د تبرک كوه په اهل دين باندې.

دارنګې التدوين باخبار القظوين جلد ۱ صفحه ۱۳۰، په شان د محمد بن عدم الغزنوي كې ليكي:

**يتبرك به و يستفاد من علمه**.

دارنګې التدوين باخبار القظوين جلد ۲ صفحه ۱۳۳ په شان د ابراهيم صاحب كې ليكي:

**ربما كانت بها كانت وفاته وقبره يزار و يتبرك به**.

